د ۱۳۵۱ لمریز کال
د سلواغې او کب میاشت
یوولسمه او دوولسمه ګڼه

پرله پسې ګڼه ۱۴۵، ۱۴۶

د تاسیس کال ۱۳۳۹

# کندهار

اطلاعات او کلتور

میاشتنۍ خپرونه





د کال ټاکل شوې ځوانې په کندهار کې د حضرت محمد مصطفی «ص» د مبارکې خرقې
د ښکلې ګنبدې په مدخل کې د کال د ټاکل شوو نجونو له ډلې د ژوندون د مجلې د مدیرې میرمن
شکریه رعد په سرپرستۍ په دې ورځو کې کندهار ته راغلې وه.

# د کال د ټاکل شوو نجونو پنځه کسیزه

## ټولې د کندهار ځینې تاریخي ځایونه او پوهنیز عرفاني او کلتوري مؤسسې وکتلې

کندهار کې ۱۷ :
د کال د ټاکل شوو نجونو پنځه کسیزه ټوله ډله چې ورسره د مجلې د مدیرې میرمن شکریه رعد په سرپرستۍ ان سهار پر لسو بجو کندهار ته ورسیده او په هوايي میدان کې یې د اطلاعاتو او کلتور د لوی مدیر ښاغلي ایوبي او د رضا کارو میرمنو د مرستیالې او عینو د لیسې د مدیرې پیغلې طرزي له خوا هرکلی وشو او د ټاکلي پروګرام له مخې به د کندهار د لیدلو وړ ځایونه وویني.



د کال ټاکل شوې نجونې د کندهار د رضا کارو میرمنو د ټولنې د آمرې میرمن فرشته ذکریا سره د زرغونې ناپه لیسه کې

دغه ډلې تر ټولو لومړی د خرقې شریفې ته د اسلام د ستر پیشوا حضرت محمد مصطفی (ص) د مبارک روح ته د دعا کولو له پاره ورغلې او وروسته یې د لوی احمدشاه بابا مقبره وکتله.

د کال د ټاکل شوو نجونو ډلې ته وروسته تر غرمې په داسې حال کې چې کندهار د عینو د لیسې مدیره او د رضا کار و میرمنو مرستیاله پیغله ګل غوټۍ طرزي ورسره وه د کندهار د رضا کارو میرمنو د ټولنې د آمرې میرمن فرشته ذکریا او د کندهار د والي ښاغلي سلطان عزیز ذکریا سره وکتل.

د کال ټاکل شوې نجونې دڅور نالیزم لیسانسه او د راډیو افغانستان مامور پیغله انیسه لطیفه، پیغله سایره نوره د کابل د ملالۍ لیسې ښوونکې پیغله زهره یوسف او پیغله پروین عظیمي د کابل د ملالۍ د لیسې فارغ التحصیلانې او پیغله فاطمه اختر هروي د هرات د مهرۍ د لیسې فارغ التحصیله ده.

د باختر آژانس نماینده زیاتوي چې د کال د ټاکل شوو نجونو پنځه کسیزې ټولې ورمه شپه په هغه میلمستیا کې چې د کندهار د والي ښاغلي سلطان عزیز ذکریا او د دوی د میرمنې فرشته ذکریا له خوا د دوی په کور کې ترتیب شوې وه ګډون وکړ.

(پاتې د پښتني په دریم مخ کې)



د کال ټاکل شوې نجونې د کندهار د هوايي میدان د ترمینل په مخ کې د کندهار د اطلاعاتو او کلتور د لوی مدیر ښاغلي غلام محی الدین ایوبي او د عینو د لیسې د مدیرې او د رضا کارو میرمنو د ټولنې د مرستیالې پیغلې ګل غوټۍ طرزي سره د دغه ولایت ته د رسیدلو په وخت کې لیدل کیږي

کندهار

د ۱۳۵۱ کال د سلواغی میاشت

# د کندهار د وړیو

## اودلو فابریکه باید بیرته فعاله شی

دا ډیر ګټور کار دی چی موږ په خپل هیواد کی دننه د تولیدی او صناعتی چارو پرمختیا ته ملاتړلی او د مربوطو حکومتی مقاماتو د تشویق له کبله زموږ پانګه لرونکی د صناعتی فعالیتونو په لار کی کوشش کوی او همدغه سبب دی چی اوس د هیواد په مرکز او ولایاتو کی یو شمیر فابریکی دریدلی او بیل بیل شیان او مصنوعات تولیدوی او ځینی نوری ئی د روسته نوری هیواد ته راوړل شوی او په کار لویږی، خو نو دی لا ډیر ضروری او په اقتصادی لحاظ ارزښتناکه اقدام دادی چی موږ خپلی هغه صناعتی دستګاوی بیرته فعالی او په کار واچوو چی د اقتصادی کمزوریا له کبله د کاره لویدلی او په فعالیت او تولیداتو کی ئی ځنهور ته منځ ته راغلی دی.

کندهار د هیواد یو داسی مهم ولایت دی چی هر ډول صناعتی، زراعتی او تجارتی فعالیتونو ته مساعد او له دغی لاری څخه د هیواد اقتصادیات هم پرمختګ دریدلای شو خو په دغه هکله د پانګی لرونکو جدی تشبث او پانګه اچول لازم او ضروری دی.

زموږ په ولایت کی د ډیر پخوا څخه چی لا په هیواد کی د پنځه کلنو اقتصادی پلانونو اساس نه ؤ ایښودل شوی او په هیواد کی خال خال فابریکی جوړول شوی وی ځینی فابریکی په کار لویدلی او د تولیداتو څخه ئی نه یوازی کندهاریانو بلکه نورو هیوادوالو هم ګټه اخستل.

ان دې په مرغه وینو چی زموږ د ولایت ځینی فابریکی چی د مخو په دراوړه لو او په کار اچولو په منیونو افغانی لګیدلی او د خلکو زیاته پانګه پری بنده ده، اوس بیکاره ولاړی او فعالیت ئی د منځه تللی دی نو که موږ د دغو فابریکو د بیرته فعال کولو په لار کی کوشش وکړو چی د کار د ضرور یاتو څخه هم دی او موږ ته به اقتصادی لحاظ زیاته ګټه رسیږی او که نه وی نو هغه پانګه هم د کاره وزی او پانګه اچونکو ته کومه نتیجه نه ور کوی.

زموږ د ولایت د دغو فابریکو څخه چی اوس د اقتصادی مشکلاتو له کبله بی کاره ولاړه او د فعالیته لویدلی ده یو هم د وړیو اودلو فابریکه ده او که د هغه د فعال کیدلو په لار کی کوم ګټور او مثبت تجویز ونه نیول سی ورو ورو هغه پانګه د منځه ځی چی په دغه هکله په کار اچول شوی ده.

«پاته په ۲۶ مخ کی»

د کندهار مجله

دامتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتی مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبی)

لیکونکی پلاوی

عبدالقدوس (نجیب)
احمد (راشد)
عبدالمنان (امین)

هیرمن ملاله (اخکزی)
طباعتی همکار: علمی (بارک)
اداره: د شهیدانو واټ
د تیلفون لمبر: ۲۸۸۴

پښتو کوونکی فیض محمد وزیری:

# د تاریخ یوه گوښه

(دوهمه برخه)

# د تاریخ په اوږدو کې د افغانستان د خلکو ازادی غوښتونکو مبارزو ته یوه لنډه کتنه

## د پښتنو او انګلیسانو تر لومړۍ جګړې پورې

### خوشحال خان خټک:

خوشحال خان خټک سربیره پر دې چې د پښتو ژبې نامتو شاعر دی دغه رنگه د توری او قلم خاوند او د مغولو سخت مخالف و. د خپلې خاورې د ساتلو په لاره کې ئې د مغولو سره د خپل ژوند تر وروستي لحظې پورې سختې مبارزې وکړې.

خوشحال خان خټک د شهباز خان زوی او په ۱۰۲۲ هجري کال کې په (اکوړه) کې زېږېدلی دی د مغولو پاچا شاه جهان د خوشحال خان ډېر احترام کاوه او په ډېره درنه سترگه به ئې ورته کتل او په همدې سبب خوشحال خان په مغولي دربار کې ډېر عزت درلود داسې نه چې خوشحال به یواځې د ادب په ډگر کې ساری نه درلودی بلکه د جگړې په میدان کې ئې هم ساری نه و، سره د دغه چې خوشحال د مغولي پاچا شاه جهان سره ښه روابط درلودل د خپل هیواد داخلي استقلال ئې هم په ښه ډول سره ساتلی و، کوم وخت چې شاه جهان له منځه ولاړی او د هغه پر ځای اورنگزیب پاچا شو اورنگزیب ډېر خودخواه سړی و، خوشحال خان ئې خپل دربار ته وغوښتی او هلته ئې څلور کاله بندي کې خو کوم وخت چې خوشحال د بند څخه خلاص شو نو د پښتنو په ملگرتیا ئې عملاً د مغولو پر ضد په مبارزه لاس پورې کې او د مغولو سره ئې سختې جگړې وکړې خو په پای کې به (۱۱۰۰ هجري) کال کې مړ شو او داسې وصیت ئې وکې:

«ما په داسې ځای کې ښخ کړئ چې د مغولو سپرو او دوی د اسانو د پښو گرد و په زما پر قبر باندې ونه لوېږي» تر خوشحال خان وروسته د ده کورنۍ هم د مغولو سره سخت مخالفت درلود.

### د پښتنو ملي مبارزې د صفویانو په مقابل کې

د صفویانو د ظلم د کندهار په ښار کې دوی د یو ډول مشکلاتو سره مخامخ کړل په افغانستان کې سیاسي بحرانو پر دې اشغالگرانو ته موقع ورکړه چې د هغې جملې څخه یو هم صفویان دي چې کندهار او سیستان ئې تر خپل سیاسي نفوذ لاندې راوستل او د اصفهان والي د کندهار په ښار کې مقرر شو او د پښتنو په آزادۍ پسې شو، پر هغو باندې ئې ډول ډول ظلمونه کول چې دغه ظالم والي گرگین و هر څه چې به د دغه ظالم زړه غوښتل هغه به ئې پر پښتنو باندې عملي کول.

میرویس خان چې د هوتکو د قبیلې مشر و او په کندهار کې ئې ډېر اقتدار درلودی او د خپل آزاد فکر او سیاست په ذریعه ئې د صفویانو اعتماد پر ځان پیدا کې او هم ئې گرگین ته خپل ځان ډېر دوست معرفي کې که څه هم په ظاهره گرگین د میرویس خان ښه عزت کاوه او اعتماد ئې پر کوی مگر په زړه کې ئې گرگین د میرویس خان سخت مخالف و او موقع ته ئې کتل چې میرویس خان ته یوه بلمه پیدا کې او هغه له منځه یوسي.

دغه رنگه میرویس خان هم د گرگین هغه ظلمونه

پاملرنه یې کوم چې دم په پښتنو باندې کول او هغه ئې د کندهار د چار څخه شړلی وو چې د فراه او بکواه په وچو دښتو کې او سیدل د هغو ماتونه ئې په ظلم او زور څخه اخستي وه. حاجي میرویس خان د سوکالۍ او اقتصادي لارې گرځېدنې ته متوجه و چې د هغو پښتنو هم څخه واخلي او د هغو یا او ډېښې د تل د پاره د کندهار د چار څخه وکاږي میرویس په دې ښه پوهېدی څخه د حج و لوري ته ولاړی کله چې بېرته کندهار ته راغی نو د خپلې خاوري د آزادولو په اړه کې سوچ یې وخت کې د کاکړو قوم په ارغسان کې د مالیې د ورکولو څخه غاړه وغړوله او د

گرگین د امر بې امریو وکړل گرگین خپل قول غښتلی عسکر د کاکړو د قوم د آرامولو د پاره ورو لېږل په دې وخت کې میرویس خان موقع مناسبه وگڼل گرگین ته ئې دعوت جوړ کی او هغه ئې په دغه میلمستیا کې سره د

یو ډلې صفوي عسکرو مړ کی او هم ئې او رو صفوي عسکرو ته سخته ماته ورکړل له دغه امله صفوي حکومت دې ته مجبوره شو چې د پښتنو استقلال په رسمیت وپېژني او د پښتنو د قوم مشرانو میرویس خان د ملي حکومت په مشریه وټاکی.

## د پښتنو آزادي غوښتونکي مبارزې د انگلیسانو په مقابل کې:

د تزاري روسیې تدریجي پرمختگ د ترکستان خوا ته د انگلیسانو توجه جلب کړل په ۱۸۱۵ کال کې د (وین) په کنفرانس کې انگلیسانو تصمیم ونیولی او چې د روس مخه د هندوستان څخه ونیسو او روسیه دې ته پرې نږدي چې هندوستان ته داخله شي نو په دې

وخت کې د انگلیسانو سیاست په افغانستان کې یو نوي شکل پیدا کی او په غیر رسمي ډول

سره ئې خپل نمایندگان افغانستان ته را واستول انگلیسانو د لومړي ځل د پاره (برنس) د امیر دوست محمد خان دربار ته

را و لېږی (برنس) غوښتل چې افغانستان د ایران او روسې څخه لېري کي او د هغو سره

رابطه ونلري او د افغانستان دولت د خپل لاس آله وگرځوي امیر دوست محمد خان د انگریزانو دوستي په دې شرط و منل چې انگریزان په پېښور د سکانو

څخه بېرته د افغانستان دولت ته ورکوي مگر د انگریزانو نماینده برنس د امیر دوست محمد خان دغه پېشنهاد نه کړ قبول نو په دې سبب

د پښتنو او انگلیسانو ترمنځ اختلاف واقع سو که څه هم انگلیسانو په ډېره اسانۍ سره

کولای سوای چې پېښور د سکانو څخه واخلي او افغانستان ته ئې ورکي مگر د دوی د خپلې خاصې او مخصوصې پالیسې په سبب سره

دغه کار و نکي ځکه چې د دوی اصلا د افغانستان دولت ته بیا نه غوښتل په حقیقت کې د انگلیسانو نقشه

داوه چې سند او بلوچستان د لارې څخه کندهار ته راسي او وروسته په هرات باندې لښکر کشي وکي. کوم وخت چې د روسیې هیئت د امیر دوست محمد خان دربار ته راغی او په دې وخت کې انگلیسانو ته بهانه پیدا سول او د پښتنو د سرداراني سره ئې خپله رابطه پرې کړل

او هم انگلیسانو په دې ښه پوهېدل چې خپله استعماري نقشه هغو وخت په عملي کولای سي چې په افغانستان کې

داسي یو سړی پاچا کي چې د انگلیسانو گټې په ښه ډول سره وساتي نو په همدې غرض انگلیسانو شاه شجاع د افغانستان پاچا کړی کوم وخت چې

شاه شجاع د افغانستان پر تخت کښېنستی نو د افغانستان آزادي غوښتونکو خلکو د هغو انگلیسي مامورینو په مقابل کې

په جګړو شروع وکړل کوم چې د شاه شجاع د دربار مامورین وو او د ده دولتي کارونه ئې اجرا کول دا هم باید ووایو چې د انگلیسانو عسکر

د شاه شجاع سره کابل ته راغلي وو چې د هغو عسکرو د مشرانو تر لاس لاندې په کابل کې خپلې

وظیفې سرته رسولې څو په یاد کې وي شاه شجاع د پاچهۍ چارې انگلیسانو په خپل لاس کې واخستې.

د افغانستان غیرتمنو خلکو هیڅ وخت

د پردیو حکومت او باداري نه ده منلې او نه ئې د بل چا تر لاس لاندې ژوند قبول کړی دی او د شاه شجاع او انگلیسانو په مقابل کې ئې په هر ځای کې جګړې شروع کړل

هغه لومړنۍ جګړې چې د انگلیسانو تر منځ پورې ئې د ۱۸۴۱ وکی د غلجي پښتنو جګړې وې چې د انگلیسانو

پر خزانه باندې ئې حمله وکړل دغه خزانه د (کلنل هیرنګ) په ملګرتیا د کندهار څخه کابل ته راوړله. کیدم غزني ته نږدې ئې کلنل هیرنگ مړ کی

خزانه‌ئې خنی واخستل او هم د کندهار او کابل لار وتړل شوه دغه د ټنګه سپه‌سالار هاشم خان چې د سید جمال الدین افغان نږدی دوست و جوړښت‌ئې وکی او د کفر دره‌ئې د انګلیسانو په مقابل کې بنده کړه.

وروسته د کفر تر جوړښت دغو ګیانو خلکو هم په جوړښت لاس پورې کړی او هم دغه ورځ د جلال آباد پر لاری باندې د (خورد کابل) خلکو د انګلیسانو پر عسکرو باندې سخت حملې شروع کړی لی او په دې سبب سره د ختیځ او لویدیځ لاری پر انګلیسانو باندې وتړل شوی د خیبر د سیمې خلکو په اوله کې د شاه شجاع ملګری وو مګر کوم وخت چې دوی ته معاش ورنه رسیدی نو د خیبر خلکو هم د شاه شجاع او انګلیسانو په مقابل کې په جوړښت شروع وکړل.

په دې ترتیب د هیواد په هر ګوټ کې د انګلیسانو پر ضد آزادی غوښتونکې مبارزې شروع شوی. که څه هم انګلیسانو ډیر کوښښ وکی چې دغه جوړ جوړاوه د هېنو ملي‌خاینانو په ذریعه سره آرام کی او خپله استعماری نقشه عملی کی مګر بیا هم انګلیسان په دغه تصمیم کې کامیاب نه‌شول.

امیر دوست محمد خان د انګلیسانو د جګړې د آماده کولو په غرض د بخارا خواته ولاړ چې د هغه ځای د پاچا څخه د انګلیسانو په مقابل کې کومک واخلي مګر د بخارا پاچا امیر دوست محمد خان بندی کی امیر دوست محمد خان وروسته تر څه مودې د بخارا څخه کابل ته راغی او په دې وخت کې آزادی غوښتونکې مبارزې یو منظم شکل اختیار کی. امیر دوست محمد خان د شمالی سیمې د څه عسکرو سره راټول کړل او د بامیان خواته‌ئې حرکت وکی او هم د بامیان څخه ډیر ځلک کوهستان ته داخل او په کوهستان کې میر مسجدی خان د انګلیسانو په مقابل کې په جوړښت شروع کړی وه او په دغه وخت کې میر مسجدی خان د امیر دوست محمد خان سره یو ځای شو او په دواړو ئې یو لوی لښکر جوړ کی. امیر دوست محمد خان د خلکو په مابین کې د ملي جهاد چغه پورته کړه او آیین ورځ ګه یو رغ ئې لوړ کی. د سپینه انګو ته ئې وتړله چې دغه سپینه لنګوټه د غزا کولو نښانه وه او هم امیر دوست محمد خان د لښکرو په اول قطار کې ځای ونیوی ورپر انګلیسی عسکرو باندې ئې سختې حملې شروع کړې لی په دغه جګړه کې د انګلیسانو زیات شمیر منصبداران مړه شول، نږدی وو چې انګلیسی عسکر ماته وخوری ځکه چې څو لو انګلیسی عسکرو په دغه جګړه کې خپل د حیات بایللی و مګر د هېنو هو اطلو په سبب چې تراوسه پوری په ډاګه نه‌دی واضح شوی امیر دوست محمد خان په دغه جګړه کې خپل ځان انګلیسانو ته تسلیم کی که څه هم په دغه جګړه کې پښتانه بریالی وو د امیر دوست محمد خان تسلیم کیدل د انګلیسانو ته بیا کومه قید او شرط څخه د افغانستان په سیاسی تاریخ کې ډیر خوا شینی پیښه ده امیر دوست محمد خان د انګلیسانو د خوا څخه په ۱۲ د نومبر په ۱۸۴۰ ع کال کې د جلال آباد د لاری څخه هندوستان ته ولیږل شو او په دې وخت کې د انګلیسانو د فکر کاوه چې موږ اوس په اسانی سره کولای شو چې خپل استعماری نقشې په افغانستان کې عملي کو ځکه چې امیر دوست محمد خان مو بندی او هندوستان ته‌مو ولیږی بل داسې مهم سړی نشته چې خلک دې پر هغه باندې راټول شی او زموږ پر ضد دې اقدام وکی.

پښتنو د امیر دوست محمد خان په تسلیمیدلو سره خپل د حیات بایلل مګر په ټې موده کې د انګلیسانو دغه فکر او نقشه غلطه شول او دوی د افغانستان غیرتلی او جنګجو په خلک نه‌وه پیژندلی چې دغه قوم بیله کوم شره څخه همیشه د پردیو اشغالګرانو په مقابل کې جنګیدلی دی او هغو ته ئې سختې ماتې ورکړې دي.

د امیر دوست محمد خان تر بند وروسته چې لومړی ملي جوړښت وسود حصارک د غلجیانو جوړښت و او انګلیسان ئې په هر ځای کې د نا آرامی سره مخامخ کړل او پر هغو ئې هر ځای سختې حملې کولې. د بلې خوا څخه ورځ په ورځ د افغانستان آزادی غوښتونکې مبارزینو په هره کوڅه او کنار کې د انګلیسانو پر ضد خپلې ملي مبارزې شروع کړې لی او هم انګلیس عسکر ورځ په ورځ د عمومي فقر سره مخامخ کیدی ځکه چې د افغانستان څوله دارایی د انګلیسانو په عسکرو مصرف سوې وه څوله دغه عوامل و چې په څوله
(پاته په ۲۵ مخ کې)



تهیه کوونکی: عبدالمنان امین

# په ویتنام کښې د دلوی او مه نیته

دو یتنام د سولی تړون د شنبې په ورځ د دلوی په ۷ نیټه د جنوری په ۲۷ تاریخ د جی ام تی په (۲٤) بجو چې د افغانستان په وخت د یکشنبې د سهار د څلور نیمو بجو سره برابر دی د فرانسې په پایتخت پاریس کښې د امریکې د متحده ایالاتو شمالی ویتنام د خارجه وزیرانو او په همدې توګه د ویتکانګیانو له خوا لاسلیک شو .

د همدې تړون په اساس د جنوبی ویتنام د خلکو د راتلونکی سرنوشت د ټاکلو حق بې له کومې خارجی مداخلې څخه تضمین شوی دی او د جنوبی ویتنام د راتلونکی سیاسی سرنوشت تر بین المللی نظارت لاندې په عمومی انتخاباتو کښې تثبیت کیږی او هم خارجی هیوادونه به هیڅ ډول په جنوبی ویتنام باندې خپل سیاسی تمایلات او غوښتنې تحمیل کولای نه شی .

د ویتنام د دواړو خواوو یعنې شمالی ویتنام او جنوبی ویتنام احزابو موافقه کړی ده چې په ویتنام کښې د اوربند احترام وساتی او د کړی او خپلی لانجې د خبرو له لاری حل کړی .

د امریکا د متحده ایالاتو او شمالی ویتنام حکومتونو هیله ښکاره کړی ده چې د دغه تړون

په دې سبب شو چې په ویتنام او ټول هندوچین او جنوب ختیځه آسیا کې یو هدایمی سوله منځ ته راشی د همدې تړون په اساس به په ۶۰ ورځو کې د امریکې د متحده ایالاتو ټول عسکر له ویتنام څخه وایستل شی او هم به د

هغې موافقې له مخې چې د شمالی ویتنام سره شوی ده په دغه موده کښې ټول امریکایی جنګی بند یان خوشې کړل شی .

د امریکې جمهور رئیس په یوه وینا کې ویلی دی چې د بین المللی کمیسیون له خوا به د ویتنام د اوربند څارنه وشی او د جنوبی ویتنام د اولس د حق تضمین به وشی چې بې له خارجی مداخلې څخه خپل سرنوشت په خپله وټاکی .

دویتنام د اوربند تړون چې د شمالی ویتنام او د امریکې د نمایندګانو له خوا لاسلیک شوی دی د ټولو ړی له خوا استقبال شوی دی .

په دې اساس د دلوی په اومه نیټه د یوې اوږدې او خونړۍ جګړې ته خاتمه ورکوله شوې ده .

په دغه جګړه کښې امریکې ٤٥ زره تنه خلک او اضافه تر ۱۳۶ زره ملیونه ډالره له لاسه ورکړی دی .

په ویتنام کښې د دوی آزادی غوښتنې هیلی د پیړۍ له څلرمې څخه راپه دې خوا شروع شوی او د ۱۸ کلو راهیسې د ویتنام په کشاله کښې د امریکې متحده ایالاتو برخه اخستې ده .

ویتنام په ۱۹٤۱ کال کښې د جاپان له خوا ونیول شو او ورو سته له هغه په دې سیمه کښې د سولې او آرامې د رڼغ په عوض کی د توپ او ټوپک ډغ اورېدل کیږی .

په ۱۹٥٤ کال کښې ویتنام پر دوو بیلو سیاسی برخو یعنی شمالی او جنوبی ویتنام باندې وویشل شو، د امریکې متحده ایالاتو د لومړی ځل د پاره په ۱۹٦٥ کال د

جنوبی ویتنام د ساتنې د پاره هغه هیواد ته امریکائی عسکر واستول او تر هغه دری کاله وروسته یعنی په ۱۹٦۸ کال د امریکې نیم ملیون عسکر په ویتنام کښې برابر ته وو، دویتنام په جګړه کې د امریکې متحده ایالاتو

د شمالی ویتنام د چریکانو په مقابل کی له هوائی حملو څخه کار واخیست خو د امریکې دی فعالیت د

وینتکانګیانو پر روحیه کومه بده اغیزه ونه کړه بلکې د امریکا په مقابل کې ئې په سخته جګړه لاس پورې کړ او د هوچي من او په لارو کمونستانو په تصرف کې سوه.

دا لو په لار یوه مهمه او اغیزه ناکه لار ګڼل کیږي.

دامریکې حکومت چې پر کمونستانو باندې دهغو سختو جګړو او هوائي بمبارېو له امله تر هغې اندازې چې امریکا انتظار درلود، تاوان ونه رساوه نو امریکا مجبوره شوه چې دهوائي بمبارېو په واسطه له لویو جنګي (ب۵۲) جو له الوتکو څخه کار واخلي.

پر جنوبي ویتنام کښې هغه وخت چې د۱۹۶۷ کال په عمومي انتخاباتو کې وانتیو بریالی او د جنوبي ویتنام چارې ئې په لاس کې واخیستلې، په ۱۹۶۸ کال کمونستانو پر هانوی باندې لویه حمله وکړه دري زره تنه غیر نظامي افراد وو وژل شول.

امریکا ودوستانو له ویتنام څخه دخپلو افرادو په ایستلو شروع وکړه او په ۱۹۶۸ کال کښې چې ریچارد نکسن دامریکې د جمهور رئیس په حیث انتخاب شو، د۱۹۶۹ کال په پای کې د هغه هیواد ۲۵ زره تنه عسکر له جنوبي ویتنام څخه وایستول شول.

دویتنام دسولې پر بالیتوب په پیکینګ کښې دامریکې جمهور رئیس ریچارد نکسن دسفر په موده کې منځ ته راغي او هغه وخت چې هنري کیسنجر چین ته بوبیا سفر وکړ دسولې دمنځ ته راتلو امید ډېر شو.

دویتنام دجګړې تاوان او خساري له دوو ملیون تنو وژل شوو او څو ملیونو تنو ټپیانو څخه عبارت دي. دا تاوان علاوه پر نظامي مصارفو او مخارجو ګڼل کیږي.

اوس چې په ویتنام کښې د سولې لار اواره ده نو بیا هم په نړۍ کښې ددایمي سولې هیله کړو.

دویتنام په سولې پورې مربوط بین المللي کنفرانس خپله وروستۍ اعلامیه خپره کړه.

دغه اعلامیه چې د نړۍ د۱۲ هیوادو د باندنیو چارو د وزیرانو لخوا لاسلیک شویده په نړۍ کښې لویو هیوادو د ویتنام ملي حاکمیت په رسمیت پیژندلی دی همدارنګه په دغه اعلامیه کښې په لاوس کې چې اوس بو ایمکې ی د دسولې تړون لاسلیک شوی دی د پوره سولې هیله شوې ده همدارنګه په اعلامیه کې په کمبوډیا کښې د یوې مناسبې سولې د مینځ ته راتلو د پاره خوښېنه شوې ده.

دامریکا دمتحده ایالاتو دخارجه چارو وزیر ویلیم راجرز د ویتنام په باب د بین المللي کنفرانس جوړیدل یو مناسب او اغیزه ناکه کار بللی دی د کاناډا او جنوبي ویتنام دخارجه چارو وزیرانو پیشنهاد کړی دی چه دفرانسې د کنفرانس او دویتنام په باب د بین المللي څارنې د کمیسیون ترمنځ باید یو دایمي تماس موجود وي. د ویتنام سوله د هندوچین په لویه سیمه کې د سولې دمنځ ته راتلو دپاره زمینه مساعده کړې ده او موږ هیله کوو چه نه یوازې په ویتنام بلکه دهغې حوزې په نورو هیوادونو لاوس او کمبوډیا کې هم سوله ټینګه شي او جنجالي مسایل د خبرو دلارې بې د وینې د تویولو نه حل شي.

---

## غوره وینا وې

بې دوستۍ ژوند لکه وچه او بې اوبو صحرا داسې ده.

«ګراسیان»

(غیر ممکن) یوازې د ناپوهانو په (قاموس) کې لیدل کیږي.

(ناپلیون)

چاچه پر ویره باندې غلبه ونه کړه هغه تر اوسه ئې دژوند لومړی درس نه دی زده کړی.

(امرسن)

د ښوونې او روزنې ماسټر محمد یونس احمدزی:

# د کوچنیانو په باره کې ډیر
# معلومات او مطالعې

## ماشومان د وړکتوب د دورې څخه تر بلوغ پورې

د ماشومانو په باره کې معلومات د هر انسان د پاره ضروري او په زړه پورې وي د پیډالوژي پوهان وايي چې کیدای سي د یوې ټولنې کرکټر، د کلچر وضع او نور خصوصیات دې د هم هغې ټولنې د ماشومانو د څېړنې څخه پېشګوي سي، یعنې که د یوې ټولنې ماشومان تر څېړنې لاندې ونیسو او دوی ته په ډول او د دوی د سلوک یادونې په هر انګو الی پوه سو د هغې ټولنې د خصوصیاتو هر انګوالی هم را ته ښکاره کیږي. د پورته جملو څخه داسې نتیجه په لاس را ځي چې د ژوند په مختلفو عمرو کې زموږ ټوله عادتونه او روزنې زموږ ماشومان زده کوي، په هم هغه ډول د ماشومانو په عمل کې زموږ عادتونه او نور خصوصیات ښکاره کیږي او یا د موږ خپلې تربیې په واسطه عادتونه، کلچر او خپل خاصیتونه و ماشومانو ته ور ښوولي دي.

پورته جملې د مور، پلار ښوونکو او د تربیې د نورو علماو لکه د روحیات پېژندونکو، ډاکټرانو او داسې نورو وظیفه د ماشومانو په هکله روښانه کړي چې دوی باید د ماشومانو د نمو او انکشاف په باره کې پوره معلومات ولري. په عمومي ډول ټوله خلک د کوچنیانو په باره کې لږ او ډېر معلومات لري ځکه دوی په خپله یو وخت کوچنیان وه او د خپل ژوند ښې او بدې تجربې ورته معلومې دي، دا موږ هم باید په یاد ولرو چې مناسبې د ژوند د دورې تغیر موندلی دی او مناسبې د کوچنیوالي د دورې تجربې د ان ور ځې سره ډېر توپیر لري.

ځکه نو باید د خپل اولاد د ژوند د پاره د خپلو تجربو څخه چې زیاتره غیر علمي ډېوي او د استعمال وړ نه دي، کار وانه خلي بلکه باید ښې علمي لارې و اټوي او کوښښ و کړي چې خپل ماشومان د ښو علمي تجربو له لارې و روزي نه د عنعنوي او غیر علمي لیارو څخه.

علماء په دې عقیده دي چې باید د لیسو حتی د دارالمعلمینو په چوکاټ کې دې د ماشومانو د روزنې د پاره وړه کتنونه متوسطې او لیسې هم وي تر څو چې تدریس آموزه شاګردان د معلمي مسلک او د ماشومانو د روزنې ترتیب د دوی د نمو مختلف حالتونه تر څېړنې لاندې و نیسي او د هغو سره کار و کړي ځکه دوی یعنې شاګردان باید د ماشومانو د ټولو روحي او اجتماعي پرابلمو په حلولو او موندلو سره بریالي سي او هغه علمي تحولات چې په یوه ټولنه کې لازم دي د خپلو زده کړو په واسطه و منځ ته راوړي. تدریس آموزه شاګردان باید د کوچنیانو د نمو د ټولو مرحلو څخه په وړکتونو، ابتدائیو، متوسطو او لیسو کې خبروي او د ښووي سره ښې پېژندګلوي ولري او هم هغه تحولات و پېژني. یعنې د نمو د دې تحولاتو د کتنې څخه تدریس آموزه دا زده کوي چې ماشوم په څه ډول یو شی زده کوي او کوم شی د ماشومانو د خوښې او خوابدي سبب کیږي او دوی په څه ډول خپل احساس ښکاره کوي او د دوی رابطه په خپلو منځو کې او هم د دوی رابطه د ښوونکي سره په څه ډول وي دا کتنې د ضعیفو مناقشو او بحثو د پاره یوازې سوالونه منځ ته راوړي د مینده او پلرو د باره هم د څه پېښې مهمې دي چې

«۷مخ»

په ډه د ماشوم د ذهن په ټولو تحولاتو پوه وي او د هغه پېښې د دوی د پاره سوالونه پیدا کوي او د اسباب دي چې د ځوانانو په چوپړ کې د رهبرۍ شعبې موجودې دي چې د ماشومانو مور او پلار او هم پخپله ماشومان د روحي او تربيې په لحاظ د عادتونو، کرکټر او ښې روزنې له مخې رهنمايي کېږي. په همدې ډول نورې اجتماعي مؤسسې لکه د کورنيو د لارښوونې عامه روغتيا او نورې مؤسسې چې د ښوونځيو او الديني سره د ماشومانو د رهنمايي د پاره کومک کوي، او ويلای سو چې د ماشومانو په باره کې معلومات د ټولو د پاره ضروري شمېرل کېږي. ځکه، د نن ورځې ځوانان د

راتلونکي پلرونه او میندې دي نو که دوی به کافي اندازه پوهنه او مطالعه ونلري مشکله به وي چې دوی خپل اولادونه وروزي، البته هغه تجربې چې ئې پرخپلو ځانو کړې دي کفايت نه کوي ځکه د خپل کوچنيوالي څخه په کافي

ډول نه وي خبر او هغه دوره چې دوی په یاد ده نظر ونني عصر ته ئې ډېر توپير لري نو که پوهنه، د انکشاف قوانين او د ماشومانو د نمو ترتيب په علمي توګه زده کړي د خپلو ماشومانو د پاره به ګټور مور او پلار وشمېرل سي او ښه ځوانان به واجتماع ته وړاندې کړي.

نمو او وده يو مطلقه پديده ده د هغه علماو دې عقيده ده چې ماشومان يوازې بايد فزيکي وده وکړي امان ودغ په لوئيدو کې يوازې فزيکي موضوع مد نظر نه ده بلکه د ماشومانو نور موضوعات چې عبارت د دوی د

شخصيت څخه دي هم په نظر کې نيول کېږي يعني د لوئيدو په وخت کې د ماشومانو شخصيت هم نمو کوي او بشپړه کېږي د ماشومانو د بشپړ احساس، شخصيت، سلوك، عادات، فزيکي نمو او د انکشاف منځ ته راتګ حتمي دي چې په لاندې ډول به شرح سي.

د ساينس او بشري قوانينو په لحاظ که متوجه سو داسې نتيجې ته رسېږو چې د ماشوم منځ ته راتګ يوه ارادي پېښه ده. که دا پېښه تر يوه صحيح پروګرام لاندې عملي سي د ټولنې آينده نسل به اصلاح او د ښې تربيې

خاوندان به وي د يله طرفه مور او پلار بايد فکر وکړي چې ماشوم حتماً په ټولنه کې يو ځای اشغالوي نو لازمه ده چې د بطن د دورې څخه ئې مراقبت وسي همدارنګه د هغې ټولنې د غذا او موادو څخه خوړك کوي نو ويلای سو په هره اندازه چې د کلچر په اساس ماشوم په فاميل پورې اړه لري او کورنۍ هم

د ټولنې يو جزء بلل کېږي نو ماشوم د ټولنې عضوه هم بلل کېږي او د روزنې له رويه بايد کوښښ وسي چې ماشوم په ښه توګه وروزل سي، دا هم بايد ووايو چې د ماشوم تربيه د مور د بطن څخه شروع کېږي، نو مور او پلار بايد د

د ماشوم تر زېږيدو د مخه په نظر کې ولري چې لاندې پېښې د ماشوم په ژوندکي ډېر دول لري.

د دخانياتو، مشروباتو او مضرو دواګانو استعمال په هغه دوره کې چې ماشوم د مور په رحم کې وي د ماشوم د پاره ډېر نقص کوي که جنين په داسې وخت کې تشکيل سي چې مور او پلار دواړه، آرام اعصاب و لري او د زړلوونکي د سالم

صحت او قوي وي ډېر به ښه وي د جنين د تشکيلېدو د پاره بايد مور او پلار دواړه خپلې وينې صحي معاينات پای ته ورسوي او په دې وخت کې د کوچني د پاره خطر لېږوي.

د کوچنيوالي په دوره کې ماشوم خپلې تجربې د هغو خلکو او شيانو سره شروع کوي چې وکوچني ته يو مفهوم ولري

په دې دوره کې ماشوم د اطمينان او اعتماد حس پيدا ن کي دوړي چې ټوله و ماشوم ته متوجه دي او

خلك ده سره محبت کوي او کوښښ کوي چې د نورو د اعتماد وړ وګرځي.

علمي موضوع پر يوه عمومي خاصيت باندې د ماشومانو د پاره ده که په دې خاصيت کې د مور او پلار له خوا قېنګاروني او يا په هغه کې

اضافه توب راسي د تدبير په شکل څه تأثير نه ورارددوي، دا هم بايد ووايو چې تر ضروري وخته او

اضافه بايد د کوچني سره تماس ونه ري ځکه هغه بايد کوردني

پر ټولو شيو د ارزښيا ولري او هم بايد څوك تر لازمې اندازې

اضافه محبت د ماشوم سره ونلري په داسې وخت کې ډېر تماس مضر نه تماميږي چې کوچني مينځې

يا بعضي مسائل نه اوسېږي د ټولو حرکتونو، د ماشوم پر لاس او پښو باندې اجرا کېږي که غذا، او نور

ضروريات د کوچني ته پر ټاکلي وخت ور کول سي په تدريجي قسم تربيه کېږي.

که ماشوم پر خپلو والدینو اطمینان ونه لري او یا والدین د ماشوم د مواظبت په هکله د ډېرې څخه کار واخلي نو کوچنی حتماً داسې عکس العملونه ښکاره کوي چې ناراحته کېږي او په همدې ډول د والدینو بې خبري نوري روحي بدې پېښې په ماشومانو کې تقویه کوي ځکه هر ماشوم د بازیو دوره هم څخه څخه کوي چې ژوندی پاتې سي .

ددوه کلنۍ څخه تر درې کلنۍ پورې ماشوم د اطمینان حس ته انکشاف ورکوي د تصمیم په نیولو او شاو خوا اشیاو په انتخابولو شروع او دا کوښښ کوي چې د یوه بااهمیته فرد په حیث ژوند وزي او ځان ته آزادي واخلي .

په عین وخت کې ماشوم وصحي نمو او انکشاف ته ضرورت اودی ته هم فعالیتونو ته اړتیا لري چې د خپل شاوخوا واقعاتو پر کشفولو قدرت پیدا کي او د هغو پېښو د پوهېدو قابلیت پیدا کړي .

په پورته جملو کې د روزنې څو موضوع ګانې سته هغه وخت چې ماشوم خپل د ځان او احساس ته انکشاف ورکوي بولي سو الونه ته پیدا کېږي نو کوښښ کوي هر کار چې د ده مور او پلار یا د کورنۍ نور غړي اجرا کوي دی هم هغه تر اجرا لاندې ونیسي او زده ئې کړي . په همدغه دوره کې

په ښه او بد هم تر یوې اندازې پوه کېږي په بعضې کورنیو کې داسې عادتونه سته چې خپله تربیه د بیرې او وهلو پواسطه و کوچني ته ورزده کوي ، بعضې کورنۍ بیا د خپلو ماشومانو سوالو ته غلط جوابونه ور کوي او بعضې کورنۍ

د ماشومانو د احساساتو په هکله بې پروائي کوي . باید وو ایو چې دغه ټوله پېښې د ماشومانو د روحي انحرافاتو سبب ګرځي او غیر سالم غړی ځني جوړېږي . تر څو یې وخته داسې موضوعات د ماشومانو پر کرکټر بد اغیزه لري دغه مرحله ده چې باید مور او پلار د خپل اولاد د روزنې د پاره آماده ګي ونیسي

او هغه شیان چې د ماشومانو د روزنې د پاره ضروري دي باید زده ئې کړي . ځکه چې په کوچني کې د شخصیت پدیدې نمو کېږي نو محبت او نوازشونه چې د ده د احساساتو د تحریک سبب ګرځي بدلي دي ، ده ی کار او فعالیت ته آماده کوي

بې پروائي ئې خوښه نه وي . والدین باید کوښښ وکي چې نظر د آزادي وحس ته چې ماشوم ئې لري باید اکثره فعالیتونه په خپله اجرا کړي ځکه چې کوچنی غواړي چې د خپل شاوخوا اشیاو سره آشنائي پیدا کړي نو والدین باید داسې عملونه اجرا نه کړي چې د کوچني د حیرانتیا سبب وګرځي . ددوی د

کنجکاوي حس ور تقویه کړي ، مثلاً لوړ آواز ، قهر بدل ، او یا بد معاشرت د ماشومانو په مقابل کې ددوی د روحي انحرافاتو سبب ګرځي او یا په کورنۍ کې نور موضوعات لکه علاقه نه درلودل او نورې موضوع ګانې و ماشوم ته انتقال کوي .

او ماشوم د خپلې کورنۍ د ټولو عادتونو تقلید کوو لګی دی په عمومي ډول په دغه سن کې باید کوچني پوهنه د بازیچو پواسطه شروع سي ځکه چې ماشوم لنډې جملې تکراروي نو باید جمله په لنډ ډول د مور او پلار له خوا

د سویې سره سم ورته ترتیب سي . داسې قصې باید ورته وویل سي چې جملې ئې ساده وي . ماشومان

همیشه بوازې خوښ وي ځکه اجتماعي ژوند ئې د خپل هم جنسه سره نه وي زده او غواړي چې بوازې بازي وکړي سره ددې

هم د خپل همسویه و کارو او فعالیتونو تقلید کوي او د لیري هغو ته ګوري یعنې والدین باید

د دې خوا څخه بې غمه اوسي د عضلاتو د تقویې د پاره ئې پولې سپورټونه چې ددوی د پښو او لاسو د تقویه کېدلو سبب کېږي

اجرا کړل سي د لنډو فاصلو څخه د سپکو شیانو وهل او راوهل او د لاسو پواسطه رسول باید ددوی پواسطه اجرا کړل سي .

او بعضې نور کارونه هم چې د سویې سره ئې برابر وي باید پر دوی اجرا سي ځکه ماشومان

غواړي چې د تصمیم نیول زده کړي . د رنګ او نورو شیانو په انتخابولو کې باید د هغو څخه مشوره

وغوښتل سي ځکه هغه د خپل شوق د پر ځای کېدو د پاره مجادله کوي او د هغو بدو پېښو څخه باید جلوګیري وسي چې ددوی د تجربو

سبب ګرځي او ماشوم دې پرېښول سي چې د خپل شاوخوا شیانو په پېژندلو کې چې بې خطره وي

معامله وکړي د کوچنیانو موسیقي دې ور ته تهیه سي ، اما هغو د فلمو د لیدلو څخه دې منع کړل سي چې د لویانو په سویه وي .

(پاته په ۳۱ مخ)

د هغه ګټ شيبه را ورسېدله:

سقېوالډسي وروسته داچول څرګنده کړه: د دې تښتې فلسطينيان لا زيني ته نه وه راختلي چې سمد ستېي د کوماندوګانو مشر له خوا تلاشي سول وروسته په خورا ګرمي دوی ته اوبل په ټيټ کې سره د تيرول

او په مچولوئي شروع وکړه د شور او هيجان نه ډکه يو عالم د خوښۍ فضا د دوی تر منځ را پيدا سوه.

زه په دغه وخت کې د عربو د داچول احساساتو او هيجاناتو تر سخت تأثير لاندې راغلی وم.

تر اوسه مې د دې قهرمانانو عکسونه په جريدو کې ليدلي وه، حيثي داسې ګمان کوی چې کوماندوګان بخپلو بدوشکلو او زيږو څيرو د خلکو په زړو کې بېره او وحشت پيدا کوي، مګر اوس چې دوی زموږ په مخ کې ليدل کيږي ذکر سوی صفات نه لري او پر دوی بدګماني کول يو ښه کار نه دی. دوی سره په زړه پوري او جذابي بڼې درلودې.

کله چې د دوی تر منځ سقېرې مسيا او يو د بل څخه حال پوښتنه پای ته ورسېده، فلسطينی بنديان زموږ و خوا ته راغلل او په ماته انګليسي ئي زموږ څخه پوښتنه وکړه اوس خوشحاله يا ست؟

د ساعت د ځلرمې برخې په تيريدو سره نابيره د خوښې فضا درهم برهم سوه، عربو کښته وپورته په ځغاستو شروع وکړه.

موږ د دې اټکي ته پوره متوجه سوو چې عربو په څه چول بې ساري کوښښ سره هغه تور رنګه لاسي بموته د دمخنيو ځايو څخه راايسته کول فوراً مو په فکر کې را وګرځېدل چې د مرګ شيبه مو را ورسيدل.

د کوماندوګانو څخه يوه په الوتي بڼه د خپلو ملګرو احساساتي کيدل مسافرانو ته د ډول تر ضيح کړه.

دا ګرب هوائي ډګر حاضر نه دی چې موږ ته د سونګ موادد را کې.

د عربو څخه يل يوه زياته کړه که چېرې وموږ ته بنزين رانه کول سي فوقوداً به لوتکه وچووه.

ګلاوسن د پيلوټ په کوټه کې له ډېرو احساساتو څخه لېږديدی او د بي سيم دلاري ئي د سونګ د موادو د مقصدی څخه غوښتنه وکړه چې ددې الوتکې ته د سونګ موادور کړي مګر د هوائي ډګر د کنترول د برج څخه په جواب کې ورته وويل سوه چې موږ ته د دې کار د اجرا د پاره تر اوسه پوري کوم هدايت نه دی را رسيدلی. تر څو چې د هوائي ډګر د آمريت څخه کوم هدايت را ونه رسيږي کوم کار نه سو کولای.

د سرتيرو مشر هدايت ورکړ چې

د الوتکې ماشينان مه خاموشه کوی په همدې وخت کې د الوتکې دوه ماشينونه د موادو د خلاصوالی په نسبت له فعاليته ولويدل او بوازې ۲ نمبر ماشين فعال ؤ.

د کوماندوګانو مشر په تهديد آميزه لهجه وويل:

که د الوتکې دغه ماشين هم له فعاليته ولويږي نو فوراً به الوتکه وچووو.

ګلاوسن متوجه سو چې د سرتيرو مشر د غوليدو څخه سخت متأثر شوی دی او غواړي چې په يوه آني او سريع حرکت سره خپل ټول اشتباهات جبران کړي.

ګلاوسن بله بلا بيا د برج مامور په نفرت آميزه ډول په ښکنځلو سره تهديد کړ، ولي

دې کار کومه ګټه ونه کړه، بيا د هغه او زاريو لاري ئي و نيوله خو دې کار هم کوم ځای ته ونه نيوی.

دې بلا د پيلوټ معاون مکروفون ته لاس ور اوږد کړ، ولي ګلاوسن هغه منع او پر نا دی ئي کړی.

لوتس ته حتماً بايد يو کار وکي!

فوراً او بيا هغه چې وخت ضايع سي او عرب موږ په هوا کې والوزوی که د بنزينو آخرني

څاڅکي هم تمام سي او زموږ مشکلات حل نه سي نو زموږ ټوله کارونه به بې نتيجې وي.

ګابل په جواب کې وويل: هغه څه چې په اختيار کې لرو موږ بايي درڅخه ونه سپمو.

ولي دا خبری د عربو په درد نه خوړی خو خوارې زموږ په ځان د ه که د الوتکې ماشينونه

له فعاليته ولويدل نو ټوله به په هوا کې د مرګ په نښا ونا څو.

که امکان ولری ته پخپله دېنزینو ومنصدی ته ورسه او ددی کار په سر ته رسولو سره ئی مجبور که!

څو شیبی لا نه وی تیری سوی چی دمیدان ټانکر د الوتکی له مخی څخه تیر سو او دمیدان د سونګ دموادو پیپ ئی د الوتکی د ټانکی سره ونښلاوه.

سفر کی موله کولکانو څخه داخلی وی. د سر تیر ومشر د سونګ دموادو عقرب د الوتکی د(ګاش بورد) له مخی په دقت سره کاته. بالاخره دتیلو عقرب دخپله ځایه څخه وغورځیدی.

ګلاوسن څرګنده کړه: د لوی خدای ته شکر ادا کوم. بیا به نو نود د الوتکی ماشینونه له کاره و نه لویږی.

یو نیم ساعت وروسته د فلسطینی سرتیرو الوتکی د تریپولی په لور حرکت وکی.

نور نو بیره او وحشت خپله سایه پر الوتکه باندی نه اچوی.

څه وخت لا نه ؤ تیر شوی چی د بیری او غم فضا پخپله ځای د روستی او خوشحالی ونیو.

مسافرانو، کارکوونکو او د الوتکی عملی، کوماندوګانو او فلسطینی بندیانو ټولو خپلی چوکی پریښودی د الوتکی په اوږده او تنګه دهلیز کی سره راټول سول او یو بل ته ئی مبارکی ویلی. د مشرو باټو

یو تلو ته لاس پر لاس سول چای قهوه او شیر یئی ترتیب سوه. دری تنه فلسطینان چی تازه ئی ځانونه آزاد ګڼل یو په بل پسی دپیلوټ و کوټی ته ور ننوتل او په وارو واروئی خپل د قدردانی تمنیات و ګلاوسن ته څرګند کړل.

د سر تیرو مشرو ګلاوسن ته مخ وروا ړاوه او په ټوکی ئی ورته وویل چی پسله دی به ستاسو په الوتکه کښی مسافرت کوو.

دری تنه آزاد سوی فلسطینانو د شکایت په توګه وویل: وزاګرب ته دراستنیدو په اخت کی آلمانیانو د دوی پیسی نه دی ورمستردی کړی د دغه پیسو اندازه د(۲۶۰۰) مارکه ته رسیدل آلمانی مقاماتو ویل چی دا پیسی د الوتکی د ټکټ دمصرف دپاره ساتل سویدی.

دمخه تر دی چی الوتکه د تریپولی پر هوائی ډګر باندی راکښته سی د شپږو تنو کسو مانسدوګانو څخه هر یوه پر خپل مخ ماسکه واغوست دوی دمکاسانو څخه په بیره کوم اوته ئی غوښتل چی دوی وپیژندل سی.

وروسته ئی خپل چاودیدونکی مواد سره راټول کړل او الوتکه د شپی پر ۹ بجو او ۱۵ دقیقو د تریپولی پر هوائی ډګر باندی ومځکی ته راکښته سوه.

د الوتکی کپتان دڅیری ستړیا څخه د الوتکی څخه راووغورځیدی او د سرتیرومشر تردغه وخته پوری لا په پټ مخ داولی طبقی په کوټه کی ناست ؤ. دمخه پسله لاس د کپتان و خواته وراوږد کی او وی ویل:

لوی خدای دی ستا سو ملګری سی. زما آخری هیله دا ده چی یوه ورځ په ډیرو ښو شرایطو کی یو د بله دفلسطین په خاوره کی خبری سره وکړو.

کله چی د آلمان داتحادی جمهوریت د سفارت څخه یو سړی ویس داغی مسافران او د الوتکی عملی ئی د تریپولی یوه ډیره ښه هوټل ته ورسول نو ګلاوسن له یوی ښځی څخه پوښتنه وکړه:

څه خبره ده خیریت دی!

تشکر خیریت دی. ستاسو څه حال دی!

ګلاوسن په خندا کی ورته وویل:

دغه رنګه دالته هم خیریت دی تر اوسه پوری لا خبرو تاوته دی سره اخستی.

(پای)

مصاحبه اومرکې: د عبدالمنان امين په قلم

# د زينب هوتکۍ منځنۍ ښوونځی

زينب هوتکۍ د نجونو منځنۍ ښوونځی دی چې په ۱۳۳۸ کال کښې د کندهار په ښار کې د نجونو د تعليم دپاره پرانيستل شو په څو شوي او همدا اوس په منځنۍ سويه نجونې په درس بوختې دي .

ددې ښوونځي آمره رضيا علومي وويل :

اوس پدې ښوونځي کښې ٦٢٠ تنې نجونې په درس بوختې دي .

رضيا علومي د يوې تيلفوني مرکې په ترڅ کې وويل چې سږ کال د زينب هوتکۍ ښوونځي ته د څيرمې ليو ښوونځيو څخه ٦٠ تنې په دې همه ټولګي کې شاملې شوې دي .

پدې ښوونځي کښې اوس د نجونو په تدريس ۲۵ تنې ښوونکې بوختې دي .

رضيا علومي زياته کړه چې اوس په دې ښوونځي کښې د شاملانو د علمي

د زينب هوتکۍ د منځنۍ ښوونځي د اتم ټولګي شاګردانې د خپلې يوې ښوونکې سره

چارو د ذده کړې دپاره د تدبير منزل په نامه يو اتاق شته چې په هغه کښې د خياطۍ حرفه شامله ده څو د آشپزۍ چارې او د سامان او لوازم د ننه شته والی له کبله يې اجرا يا نه دي .

د زينب هوتکۍ د منځنۍ ښوونځي نجونې د تدبير منزل د پروګرام پرچو کاتې سربېره چې د لاسي صنايعو چارې سرته رسوي يعنې پرځينو ټوکرانو باندې خامکې، آينه کاري او دستي کارکوي او د مخو چامو او ګنډنانو د ګنډلو دپاره هم چمتو دي .

ددې ښوونځي آمرې زياته کړه چې ددې ښوونځي د يوې نجلۍ اقليما تومنی د لاسي صنايعو يوه اثر د خزان په سالون کې چې د پوهنې د شاګردانو د هنر او آرت د آثارو د نمايش دپاره هر کال د پوهنې د وزارت له خوا په مرکز کښې ترتيب کېږي تير کال يې هنري جايزه وړې ده .

ددې شاګردانو د خياطۍ عيني کارونه د خرڅلاو دپاره هم چمتو کېږي چې خلک يې ذوق، استعداد او لياقت ستائي او هم

پدې ښوونځي کښې د هاړندوی بو تشکيل شته چې ځانګړو نجونو او شعيرانو (٤٠) تنو ته د ښوونځی د يوې مسلکي ښوونکي تر نظر لاندې د هاړندوی خدمتونه اجرا کوي او هم د دوی د نجونو په ليسو او ښځو په ټولنو کې اجتماعي او صحي خدمتونه اجرا کوي او په هغو ټولنو کې کمکونه کوي چې په هر ځاى ده

ميا شتو کښې ددوی د تعليمي او مسلکي چارو د پرمخ بيولو دپاره جوړېږي .

د زينب هوتکۍ د منځنۍ ښوونځي آمرې وويل :

اوس ددغې ښوونځي تدريسي هيات د عالي دار المعلمين پکلو رياء او منځنۍ سويې د نجونو د تعليمي چارو د سرته رسولو دپاره په خدمت بوختې دي او ددې هيله لري چې شاګردانې دا وسني ټولنې د ښه او ګټورو عناصرو په حيث د ټولنې او د خپلې کورنۍ دپاره د يوې پوهې او منورې ښځې په حيث په خپل ژوندانه کې بريالۍ وي .

(پاتې په ۳۳ مخ کې)



# دښځې و باطيني او ظاهري خصوصياتو ته يوه کتنه

تهيه کوونکې ملاله اڅکزۍ

متعادله ښځه : متعادله ښځه هغه ښځه ده چې مهربانه، خليقه، خوږه ژبې او په کور وږه کې يې تکبر او غرور نه ښکاري په بيان کې يې بې الايشه او طبيعي وي. ډېر زړه د خپلو خوښاتو تر اغيزې لاندې نه راځي، بلکه سنجيده او فهميده مخ ته ځي. د موډ او فيشن څخه لږ استفاده کوي. که څه هم زيات جذابيت ونلري متعادله ښځه د زيوراتو او نورو تجملي شيانو په استعمال کې لکه لومړۍ ښځه افراط نه کوي. ساده کالي اغوندي د مخونو کرانو د اغوستلو څخه ډډه کوي چې متوجه کوونکي وي، خپل ذوق او علاقه ته کراو دوخت له لارې څرگند وي. د سينې د څوږوالي څخه احتراز کړي. د بدن د برجسته برخو د ښکاره ايستلو لپاره د تنگو جامو د اغوستلو څخه ډډه کوي د رنگونو د ښکار په هکله صافي او ساده گې خوښوي او د مخ د رنگ او پيچ و تاب څخه پرهيز کوي. د کښېناستو په وخت کې هره لحظه لمن نه کښته کوي. او يا پوره نه د پښو څخه نه باسي. په لدرت سره پښې يو پر بل اېږدي. او د خبرو کولو په وخت کې لکه عصباني ښځه گوتې نه تاووي او هم سترگې په تصنعي ډول و مخته نو زوا ياڅ ته نه اړوي د مقابل نفر سترگو ته لږ گوري او کله کله چې گوري ليدنه يې نافذه او د معنى ډکه وي.

متعادله ښځه د چا سره د مصافحې کېدلو په وخت کې تصنعي حالات د ځانه نه ښکاره کوي. او نه خودخواهي او کاذب غرور ښکندوي بلکه په لومړي برخورد کې ځان کنترولوي او هڅه کوي چې طبيعي پيش آمد وکړي. خندل يې طبيعي، تبسم يې بې الايشه وي ترڅو د مخه نه کښېني بلکه په هر وخت کې د اجتماع مقتضيات او مقررات مراعاتوي. لږ څه شرمناکه وي او ډېره خبريالا نه وي. د بيگانه او د آشنائي او معرفي په وخت کې يې پر له پسې و کالو او سترگو ته نه متوجه کيږي يعني و بوي بلې نقطې ته متوجه او يا په بل شي ځان اخته کوي انتظار کوي ترڅو مقابل طرف خبرې شروع کړي که يې د وړ کړه چې مقابل طرف په ماهرانه ډول خبرې شروع کړي او د قدرت خاونده دي. خپله زياته علاقه ښکاره کوي او که د پوهېږي چې مقابل طرف يو ظاهر بين او بې معلوماته فرد دی نو په لنډو جوابونو اکتفاه کوي.

متعادله ښځه عموماً ډېر معلومات او د بشري موضوعاتو سره خاصه علاقه لري. د زړه ورقت نه په هر کاتو کې بلکه په جملو او کتنو کې ښکاره کوي په صحبت کې خونسرده او زړه لاس او پښه کيږي. د اقتصاد طرفداره وي ترڅو د اطراف مخه ونيسي. ل شي په خپل خرڅ کې کوشش کوي ترڅو چې پس انداز ولري په اجتماعي لحاظ د ټولو خلکو سره صميمي روابط لري. د دروغجنو او چاپلوسو خلکو څخه يې ډېر بد راځي. د دوستانو سره تظاهر نه کوي بلکه صادقانه او صميمانه کړنه ورسره کوي هر کله د دوستانو سره د زړه د ازوائي او په زړه پانې عقدې نه بارو ي د غه رنگه د خپلو دوستانو د زړه رازنه په دقت غوږ نيسي. او تر ممکنه اندازې مرسته ورسره کوي متعادله ښځه د مقرراتو پابنده وي او د کورنۍ حيثيت ډېر ارزښت ورته لري د دښمنۍ څخه نبقيده وانکی او د کينې او حسادت څخه ليري والی کوي

متعادله ښځه په دوستۍ او محبت کې پايداره، صميمي او باوفا ده د خاونده په انتخابولو کې ژر تصميم نه نيسي و د وسته ترهغه چې خپل د ژوند ملگري و پاکي نو خپل د ژوند اول اهداف و خپل محبوب ته خلاصه کوي.

متعادله ښځه د دې د پاره چې ميړه ورڅخه راضي وي، روابط يې د ميړه د خپلوانو سره ټينگ وي.

د متعادله ښځې سره واده د نيکمرغۍ او آرامۍ اينده ي راوړونکې دي.

هغه سړي چې و کولای شي چې د غه ډول ښځه لاس ته راوړي، مطمئن دي اوسي چې نيکمرغه آينده په مخ کې لري.

# میرمن راحله

موږ غواړو چې د کندهار په مجله کې کله کله د دې ولایت باسوادې، پوهې او هغه میرمنې او پېغلې معرفي کړو چې سربېره پر کورنیو چارو رسمي او ملي چارې هم په پوره لیاقت او مهارت پرمخ بیایي.

زموږ د دې هفتې میرمن چې تاسو ته یې لنډه سوانح او د ژوندانه حالات بیانوو میرمن راحله ده او اوس د کندهار د مخابراتو د اتومات ټیلفون د اپرېټرۍ په حیث وظیفه سرته رسوي.

راحله د سید هاشم آغا لور ده په خوږه سیده او په کندهار کې پنځه ویشت کاله د مخه زوکړې او خپل ابتدائي تحصیلات یې د زرغونې انا په لیسه کې



میرمن راحله د کندهار د مخابراتو د اتومات ټیلفون په سویچبورډ کې د اپرېټرۍ په حیث د وظیفې د اجرا کولو په حال کې لیدل کېږي

سرته رسولي او لومړی ځل په ۱۳۴۰ کال د کندهار د میرمنو په موسسه کې د ګنډلو د ښوونکې په حیث په اجبر توګه مقرره شوه او د لته یې د دې کاله د غه وظیفه پرمخ بوتله او وروسته له هغه په ۱۳۴۳ کال کې د کندهار په مخابراتو کې د رسمي مامورې په حیث مقرره او تېر یو کال وروسته کابل ته د تلګراف په شق کې تبدیله شوه او پنځه کاله یې په کابل کې د تلګراف په څانګه کې د اپرېټرۍ په صفت کار وکړ او سږ کال د کندهار په اتومات ټیلفون کې د اپرېټرۍ په حیث په کارګمارل شوې او اوس اسمه ر تېږده.

راحله په انګلیسي ژبه خبرې کولای شي موردنۍ ژبه یې پښتو او په دري ژبه هم پوره پوهېږي په بافت، خامک دوزۍ، خیاطۍ او آشپزۍ کې زیات مهارت لري او اوس هم چې د درسي کارو څخه فارغه شي په کور کې د ګنډلو او بافت په لاسي چارو څخه مشغوله ی.

د اجتماعي کتابونو، مجلو او اخبارونو د مطالعې سره علاقه لري، د مېنې ژوب او زیات آرایش مخالفه ده. د نارینو او ښځو د پاره بیقلې جامه نه خوښوي بلکه په دې عقیده ده چې افغاني نجونې او میرمنې په خپل افغاني لباس ښکلې ایسي او تومولې ساده جامه او ژوند تر هر څه ښه ګڼي.

میرمن راحله واده کړی دوې لوڼې او یو زوی لري خو د دوو کلونو راهیسې د مېړه څخه جلا شوې او تر دې وخت وروسته خپل ژوند تره وخت د اولاد په روزنه تېروي.

تومولې صفت، دیانت او د کور په چارو کې زحمتکښي او د اولاد په روزنه کې زیاته پاملرنه لرل د افغانۍ میرمنو اوی صفت بولي.

# دغنموږی

## پنځمه برخه

یوله پله چې بیزار وی — ورور له ورور ه ځانګړی وی
یا چې کوړ په کوړبدی شی — د تر برو سره ودانی وی
یا بې هنره ژوندون کاندی — د هر چاسر کی خانی دی
که د شتیا بو بڼی دا تول — خو د جهل قربانی وی

او که ژوند په علم روښ سی، نود وسواس وشیطان څه دی ؟
سره یو هیو ماغزه یو، دا بیلتون د یو ځای څه دی ؟





له غیرته که څه جوړ وی — یا هر څه په ژوند ه ژمری وی
ساری نه لری د تور ی — هر څ کړ باندی بری وی
که قول ژوند وی سرتر او که — یا د اوسپنی سټ ی وی
یا له اوره وی جوړ شوی — او له هر څه ګی تیری وی

خو بې علمه کور ه هیڅ دی، آخر کښیوزی په کروړ ه
ناپوهی بی پرسر غوځار کا، وبی وزی د مغزی دړه



او که غواړ و چې ژوندی شو — ځان وژغور و له ذلته
بیا څر ګند شو په دنیا کی — سره خپل د ژاړه پته
یا مو یا نه د تاریخ شی — د آسمان پر مخ او چته
یا غلیم موخوار ذلیل شی — دا ته شی ګی ستر ګی کښته

مرحوم ولی محمد مخلص

# په بهانه پیښ

... برالی شوم پر کوڅه د میخانه پیښ
خپل قسمت کړم پو بوهسی مستانه پیښ
ماول چیرته یم دا غلی دا کوم ځای دی ؟
... بیا څه خوب نو یږم که یم پر افسانه پیښ
دوول ورک شه ته پر سد؟ دا خرابات دی
چی له سمی تېری شوې پر ویرانه پیښ
دلته می دی هم محبوب دی هم مستان دی
هغه نه پر یږدی چی ځان کړی په بهانه پیښ



اول شرط د سر بایلل دی بیا دی دام کښی
بیا که ورو وسته خپل طالع کړی بردانه پیښ
څود سترګو توردی سپین له غمه نشی
هیڅ به له شی پرسپین مخ د جانانه پیښ
په درست عمر خلاصی نه مومی له مرګه
هر څوک چی شی د عشق پر ژولانه پیښ
ماول ته وله قبلوم چی څه دا کیږی
خدای دی هر یو کړی پر هسی خزانه پیښ
نو ول دا سه چی مخلص ګی څه د ننه
چی دی کړم د لیونتوب پر پیمانه پیښ




تهیه کوونکی : طالب

عبد الغفار بریالی :

# دخط شپول

لکه شمعی چی له خوالی څه لیمون وکیښ
ما هم هسی په ګدا زدا مضمون وکیښ
دا تقدیر دی چی د جبر انفعال کړی
له اسمان څخه درحم بیلتون وکیښ

چی غمزو دی دوحشت توری تیری کړی
ماله ځانه څه امید دژوندون وکیښ
شپول دخط دی درخسار پر قمر له دی
دادی زماو مرګ ته لوی قانون وکیښ

په ابداع د پرملون ګی سترګی سری دی
چی وځان تې په لقب افلاطون وکیښ
خوشی محض په بدنام طوفان دنوح سو
زما واو چشکو تې فرات وجیحون وکیښ

په نامه (د بریالی) می هاله ستایه
که په شعر می له څخکی قارون وکیښ

## میفروش

برای خماری ناست ؤ میفروش پر تش یاد چال
هر یو غاو خم خالی کی، ده پیدا نه کی مجال
تر دریاب چی تېری تیر سی هغه دا سی بی طالع وی
په رشتیا «دوڅه کوزه ده عیب په کود کړی د کلال»
( طالب )

حمید هوښمند:

# د غم لایق

په خیرات چې یار د حسن پاس لاس وانیو
له رسوږمې ورته کچکول په لاس پاس ونیو
مهتر خضر یې په عمر خریدار شو
چې یې خال غلام د مخ په نخاس ونیو
که څوک نیسي خو به یو زړه په اخلاص نیسي
یاری ښکلو درست جهان په لباس وانیو
شکوفې شګفتګۍ په شبنم را وړه
که می سترګې په ژړا کې الماس ونیو
چې می یار به لور د مهر ګذر نه کا
خدای زده پوهیږم بیا څه واسواس ونیو
زړګیاتو رڼا خوانی د ترکو څه شو
که یوه ناصح ژبان د سپاس وانیو
چې یې تل سته ګو کول ښکنځ خوبونه
د مخ ښهر یې د ډېرې هواس و نیو
چې نازل شو د عشق تندر له آسمانه
ما حمید د غم لایق ورته لاس ونیو

# لنډۍ

صنم ترکان څه زړونه وړای سی
ولی په دی لار کی سوزان بلا کوینه
رنګ او و قاله شر قه بسو یه
خو ښایسته اندام د غرب مزه کوینه
ته وفادار ما بې وفا کښی ی
نیاز د عشاقو معشوقی په ناز کوینه
قلم چې ستا واهه مینه ی
زه لا لهانده ګرزیدم چا به لیده
زړه می بلیږی تن و بلیږی ی
د شم په رنګ خوږمه پر سر غشی وادونه
زړه می و هر ګلرخ ته زاړی
لکه ماشوم پر هر چا خیال د مور کوینه
زړه می د هر ښکلی بای کښی دی
چې یې طواف د مخ سهار ماښام کوینه
حقیقی مینه هم له ستا ده
د امجازی مینه می تا ته بربد دینه
(ك کندهاری)

# راته وایه

که ته ګل وای، زه بلبل وای
د چمن په غېږ کی دوا ده

نیمه شپه د پسرلی وای
حلقه ګوښی له ما لیا ره

ستا ده می سپینی د ښاته
ما له غمه نا قرار ده
وږدې کې ی وای خوله تا ته
د تو دی بوسې لپاره

تا به څه وي خو شنما یه؟
را ته وا یه، ته وا یه!

یا که چېرې له ښه مرغه
ته ږوه وای زه پتنګ ستا

په محفل کښې د مستانو
حلقه خواکښې داو رنګ ستا
یا ټولی کی د خوبانو
چې وای هره بوه په رنګ ستا

د ټولی مینې په اصر
کښېښتلی وای به څنګ ستا
تا به څه وي خو شنما یه؟
راته وا یه، راته وا یه!

یا که ته یې ... مستقه
وای زه د انه د نن خو انه
تا د ګلو ننداره کی ای
ګلو و اده کتا ی تا ته

د څوانی به حکم زه هم
وای د را غلی تما شا ته
ستا نظر می و ای پلسی
د خوږ من زړه تقا ضا ته

تا به څه وي خو شنما یه؟
را ته وا یه، راته وا یه!

(پسرلی)



تهیه کوونکی: احمد «راشد»

لیکوونکی عبدالرسول «بهائی»

د حقوقو د پوهنځی محصل

# ځوانان څوک دي؟

دا یو منلی واقعیت دی چې یوه ټولنه د ځوانانو په واسطه سره پرمختګ کوي او نوموړې ټولنې ته ترقي ورکوي. ځوانان په یوه اجتماع کې د یوه روښانه څراغ حیثیت لري، لکه څرنګه چې یوه ډیوه خپل شاوخوا روښانه کوي او د همدې ډیوې په واسطه سره انسانان لار وینې او خپل هدف ته رسیږي نو که د غه څراغ نه وي خلک هیڅ لار نه وینې او د ډیر لوی مشکل سره مخامخ وي.



عبدالرسول

نو په هم دغه اساس سره ځوانان په یوه ټولنه کې د روښانه ډیوې حیثیت لري. لکه څنګه چې وویل سوه څراغ په واسطه سره انسانان خپل اطراف وینې ځوانان هم د خلکو رهنمائي کوي. د بله طرفه څخه که موږ ښه ځیر سو دا په زړه ته معلومه سي چې په نړۍ کې ډیرو هیوادو او د ځوانانو په هر سمه سره پرمختګ کړی دی دا ځوانان دي چې یوې ټولنې ته ترقي او پیشرفت ورکوي. په هر صورت څرنګه چې د لته موضوع د ځوانانو مطالعه کول دي باید ځوانان په ښه ډول سره د مطالعې لاندې ونیسو.

ځوان هغه چا ته ویل کیږي چې ځوان او نوی فکر ولري او نوی فکر دا مفهوم لري: هر هغه څوک چې د خپلې ټولنې د آبادولو د پاره، ملا وتړي او د هغه د پاره مجاهده وکړي د ځوان په نامه سره یادیږي. دا فرق نه کوي چې، نر، ښځه زوړ او یا ځوان، لوی او یا کوچنی وي د دغه ډول ته اشخاصو څخه هر یو که د خپلې ټولنې د پاره خدمت وکړي د ځوان په جمله کې راځي او هغه ته موږ ځوان ویلای سو.

د پورته کرښو څخه دا معلومیږي چې د ځوان کلمه په هغه چا باندې اطلاق کیږي چې د خپل وطن د پاره کار وکړي او د هغو د پاره د موسائل برابر کړي.

ځوانان باید په خلکو کې واوسیږي، د خلکو څخه زده کړه وکړي او بیرته یې خلکو ته وروښیي. ځوانان باید په ښه صفاتو باندې سمبال وي- ځو د دغه صفاتو په واسطه سره وکړای سي د خلکو په منځ کې محبوبیت پیدا کړي او د خلکو اعتماد ځان ته حاصل کړي. ځوانان باید د هغو اعمالو او کارو څخه خلاص وي چې په ټولنه کې هغو ته بد ویل سوي دي. ځوانان باید هغه کارونه چې ملت ئې خوښوي د ځان پیشه وګرځوي. د یوې ټولنې ځوانان باید د ښه او برجسته اخلاقو خاوندان وي-هم دغه رنګه ځوانانو ته لازمه ده چې د بیګانه ؤ تقلید پیروي ونه کړي د تقلید څخه ځان ژغورل یو لازمي امر دی کوم ځوانانو چې خپل ملی کلتور هیر کړی دی و خپلې ټولنې ته هیڅ خدمت نسي کولای او نه به د خپل ولس هیلې ترسره کړي.

موږ د افغاني ځوانانو څخه دا هیله لرو چې د خپل ګران هیواد یعنی افغانستان د پاره خدمت وکړي. ان د افغان ولس ځوانانو ته دا امید دی چې د خپل هیواد د پاره کار وکړي. د بله طرفه څخه ځوانان باید دا خپله ایماني او وجداني وظیفه وبولي چې د خپل وطن د پاره خدمت وکړي. د ننورځې ځوانان پر خپله غاړه باندې ډیری وظیفې لري چې د هغو جملې څخه یوه مهمه وظیفه هم د افغانستان ودانول دي.

افغانستان یو مخ په ودې باندې هیواد دی ننورځ دغه ځوانان دي چې هیواد ته به پر مخ بیائي. زموږ د ټولنې ځوانان دا وجیبه لري چې زموږ وطن د نړۍ د پر مخ تللو هیوادو په لیکه کې دا ولي. په آخر کې دا باید ووایو سي چې ځوانان د ځلاندو ستورو سره شباهت لري. ځوانان د علم او پوهې خاوندان دي چې د دغه علم او پوهې په واسطه سره او لس رهنمائي کوي.

پښتو کوونکې راشد:

# ځوانان باید تر هر څه لومړی انتقاد د خپل ځان څخه شروع کړي

د څه وخت راهیسې زموږ هیواد د دیموکراسۍ نظام
ساحه کې د بوه لوی تحول سره مخامخ شوی دی یعني
څوک د خپلې هیلې او آرزو سره سم تر هره ځایه

... دي چې قانون اجازه ورکوي آزادي لري. ټول
... طن دوستان چې په عمومي ډول که ترو ی او که ښځه،
... ښ د ر ي وي او که ځوان د خپل گران هیواد د ترقي

... پرمختګ هیله په زړه کې ولري د دي
... وي د زموږ هیواد د لرغوني روښانه تاریخ د واقعیتونو
... دوښ نه کول ... د ټولو منفیتو جنبو د تائیدو لر

... ټولو منفي جنبو د نفي کولو د پاره کولای شي په
... کاده تو که خپل نظر څرګند کړي، چې به د څه
... ودت کو ... او روښنفکره ځوانان چې د مسئولیت
... ک کولای شي وظیفه لري چې په دغه لیاره کې زیات
... وښښ وکړي.

په ملي ژوندکې د برخه اختلال او د ټولو آفتونو
... که د ناپوهۍ، فقر، جهل په خلاف جهاد زموږ د ټولو
... لکو وظیفه ده خو د روښنفکره او تحصیل یافته ځوانان

... د ملي او اجتماعي نهضتونو بیرغ یې په لاس کې
... ستي وي باید په دغه لیاره کې وړاندې روان وي.
ځوانان باید په زړه پاک، راستکاره او باد یانته
... ي. ځوانانو وظیفه لري چې د خلکو اعتماد ځان ته جلب

... ي ځوانان باید د هغو کسانو د پاره چې ځوانان یې
... تر ... کي او څراغ دي، د هیلو ما ... وي.
زموږ د ټولنې خلک د هیواد پرمختګ او ترقي
... ځوانانو د علم او پوهې په رڼا، استقامت، اخلاق

... ساني او اخلاقي کرامت پورې مربوط بولي. نو باید
... هیواد د راتلونکي پرمختګ هیله و لري او په وطن

... ستو، بشریت غوښتونکو او پاک زړو ځوانانو
... ندې اعتماد ولري او ځوانان هم باید د خپل توان
... قدرت په اندازه، د هغه علمیت او پوهې په اندازه

چې لري یې د هغو مرامونو د مخکې تګ د پاره چې
ټول وطن دوستان یې هیله لري په پرمختګ شوي او د ژوند ته
کلمې د فکر څخه و باسي او د یوه انسان په نامه د ټولنې
د پاره خدمت وکړي.

ځوانان باید د ښتیا او رښتنولي خپل شعار
وګرځوي. لومړی د خپل ځان څخه انتقاد شروع کړي
او بیا بل ته ګوته ونیسي یعني د موږ پرستۍ، خودخواهۍ

او تجمل غوښتو لو په ځای وطن دوستۍ او بشر دوستۍ
ته خپل فکر واړوي.

د نړۍ پرمخ تللي هیوادونه برخپلو ټولو مشکلاتو
باندې بری پیدا کړی دی ځکه په دغو هیوادو کې
علمیت او پوهې پراختیا موندلې ده خو زموږ د هیواد

په شان چې په سلو کې نوه برخه یې بیسوادي او نور
ټول بوډ بیسوادي او ناپوهۍ سره لاس او ګریوان
دي باید د دغه حیاتي پرابلم د پاره یوه صحیح حل
لیاره پیدا کړي.

اوس موږ د معنوي کړو د تسخیر په عصر او په
یوه حساسه اجتماعي مرحله کې ژوند ته دوام ورکوو
نو ځکه زموږ د ګران هیوا د ټولو ځوانانو ته لازمه

ده چې د واقعیتونو څخه انکار ونه کړي او ټول مسایل
د تعلیم او تعقل له په خپل ځان باندې په اعتماد حل وفصل
کې او د خلکو د ذهنونو په تنویر کې زیاته برخه
واخلي.

څو د پاک خدای (ج) په مرسته یې او د هغو ځوانانو
په مرسته چې هدف یې له د هیواد د پرمختګ څخه
بل شی نه دی خپل هدف ته چې د هیواد عتلا او لوړېدل
دي ورسیږو.

په پای کې د ګران افغانستان نیکه بختي د علم
او پوهې په رڼا او د ټولو خلکو خصوصاً د وطندوستو
ځوانانو په زیاتو کوښښونو کې د پاک خدای (ج)
د دربار څخه غواړو.



تهیه کوونکی: پیغله سکینه نورزۍ

# ابن سینای بلخی

ابوعلی حسین د عبدالله زوی د سینا زوی چه لقب ئې حجة الحق او شرف الملک او امام الحکما

معروف په شیخ الرئیس د اسلامی نړۍ د لوی نابغو له جملې څخه دی چې په فلسفه کښې د عالی

افکارو خاوند او په طب کښې په نادرو معالجو مشهور دی. ښه نورو علومو کښې هم غوره تصنیفونه لري.

پلار ئې عبدالله د بلخ دا و یو اعیانو څخه ؤ. دی د صفر ی د میاشتې په دریمه نیټه په ۳۶۳ هش کال او په بل عبارت په ۳۷۳ ه ق

کال زوکړی دی. په پنځه کلنۍ کښې د علم په زده کړه بوخت سو کله چه لس کلن سو د هغه وخت

په زیاتره علومو کښې ئې پراخ معلومات حاصل کړل. وروسته له هغه ئې د منطق په زده کړه کښې

زیار و بوست او په دې لار کې ئې زیات بریالیتوب حاصل کړ.

استاد ئې (ابو عبدالله ناتلی) د هغه د پلار ورو څوښت او د هغه سپارښت ئې وزه وکړ چې د خپل زوی په ښه روزنه او پالنه کښې زیات کوښښ وکړی او هغه لوی استعداد بې ځایه نه کړي.

ابن سینا د منطقو تر زده کړې وروسته د ریاضیاتو په زده کړه پیل وکړ او د ریاضیاتو زیات مشکلات ئې بې د استاد له مرستې حل کړل هغه وخت ئې د طب د علم په طبابت هم پیل وکړ او په عین حال کښې د فقهې او فلسفې علوم هم تعقیبول. تر څو چې په هغه علومو کښې هم د نظر خاوند سو او د هغه وخت پاچهانو ئې د مصاحبه خوښه رنګی سوه. دی څه موده د علاءالدوله کاکویه د وزارت په وخت کښې د (ری) حاکم ؤ په دغه وخت کښې

بی ساری معالجې د ناروغانو په هکله څیړنې و لیدل سوې چې د ټولو د حیرت سبب سوې.

د ابن سینا د معالجاتو د څو فقرو د مطالعې له مخې چې د هغه د حال د شرح په هکله ئې په خپل کتاب کښې یاد کړې بدی څرګندیږي چې دی سر بیره پر جسمانی

ډاکټری په روحی طب کښې هم مهارت درلود او زیات ناروغان ئې د هغو د روان شناسی یا روح پوهندې پر اصولو معالجه کړي دي او په دې اساس د ۹۵۰ پیړۍ مخه تر فروید اطریشی مشهور روح پوه عالم د تحصیل له لارې د معالجې له مخې د روحی ناروغۍ سره آشنا ئې درلوده.

د ابن سینا تألیفات تر سل کتابه زیات دي چې تر ټولو مهم ئې د طب په علم کښې (کتاب قانون، ارجوزه طبیه، شفا، اشارات، نجات او سماع طبیعي) دي چې له دغې جملې څخه د قانون او د صلیبی جنګو مقارن کتابونه په لاتیني ژبه ترجمه سوي دي او په اروپا کښې پنځه پیړۍ په درسي مهمو کتابو څخه وه. دغه رنګه ارجوزه، د رساله ادویه قلبیه او د حیواناتو په باب مقاله هم په لاتیني ترجمه سوي دي.

د ابن سینا څو کتابونه په دری ژبه پاته دي چې یو ئې د نبض د پېژندلو په باره کې رساله او بله د نفس د ماهیت په هکله رساله ده.

(نور په مقابل مخ کی)●

# د کوچنیانو د هنر د انکشاف نوی تلویزیوني ستډیو

په دې وروستیوو خته کښې یو نوی د کوچنیانو او شاګردانو ستډیو د تلویزیوني خپرونو د پاره د شوروی د هنري حلقو له خوا تأسیس او په کار پیل کړی دی. دغه ستډیو چې «اولونکو» نومیږی د ترتیب شوی پروګرام سره سم د کوچنیانو د پاره ورزشي راپورونه او په توریزم پورې مربوطه مضامین محیطي حفظ الصحه، د لویو او مشهورو خلکو معرفي، هنري پروګرامونه او نور د غی ستډیو له لاری خپریږی. د خپرولو د چارو انسجام او تدریس د هغو خلکو په غاړه دی چې په روانشناسی او کوچنیانو په تربیه کښې اوږده سابقه ولري چې اکثران، هنرمندان، مؤلفین، کیسه‌ګان او د ادبیاتو پروفیسران دی. ورځ د پروګرام سره سم ستډیو ته ورځي او په زړه پوری پروګرامونه وړاندې کوی، د کوچنیانو د روحی او ذهنی انکشاف د پاره زیاتره کانسرټونه او مسابقی صورت مومی او د دوی د ذ یانت تشویق د پاره ګڼ شمیر جایزې هم ټاکل کیږی. ګډون‌کوونکي او هغه ځیاړ کوچنیان سربیره پردې چې د قناعت وړ ځوابونو ځوابونه وایي او

برابر و لو جایزې اخلي، موقع ورکول کیږي چې په خپله د موسیقي په غږولو، ورزشي تمرینا تو په اجرا او نورو تلویزیوني پروګرامو کښې برخه واخلي.

---

## پیغله لطیفه

### د ملالی د شوونځی یوه تکړه زده کوونکی

پیغله لطیفه د پوهنی د پخوانی مدیر ښاغلی عبدالعلی لور ده په ۱۳۳۷ کال په کندهار کښې زوکړې ده. په ۱۳۴۶ کال د ملالی په ښوونځی کښې لومړی ټولګی ته داخله شویده او د شا ملیدو راپدیخوا تراوسه د نوموړی ښوونځی په پنځمه ټولګی کښې د س لولی د خپلې ټولګی یوه تکړه زده کوونکی ده. همدا راز پیغله لطیفه سربیره پردرس ښه لو د ګنیو او ارزښتناکو سره هم بلده او مینه ورسره لری نوموړی غواړی چې خپل تحصیلات ترپایه په دغه ډول تعقیب او زیاد و یاسی چې د ټولنی او جامعی د پاره د خدمت مصدرو ګرځی، دا سربیره پر دی چې د خپلی ټولګی یوه بیا ستاینکی شاګرده ده د خپلو ښوونکو، همڅو لګیانو او نورو مشرانو د درناوی او احترام ساتی او قدر په ستر ګه ورته ګوري او د ښوونکی ارزښتناکه خدمتونه ستایی.

---

## د اروپا کوچنی مؤلفه

(سلجا) چې اوس دوولس کلنه ده د آلمان د اتحادی جمهوریت د ښتنا تکاوت د خپرونو مؤسسی څه موده دمخه د خاصو مراسمو په ترځ کښې د ۱۹۷۲ کال د مؤلفینو جایزه دی ته ورکړه او د اروپا د کوچنی مؤلفی په حیث وپیژندل شوه. هغه کتاب چې دی تالیف کړی دی. پانګیزی کیسی نومیږی د ۲۷ فصلو په درلودلو سره د حیوانا تو، الو تو ، انکو خزند ګانو، وحشی حیوانا تو او نورو مخلوق په مفصل ډول بحث کوی.

(سلجا) خپله لومړنی کیسه په اوه کلنی کښې ولیکل ورو سته له هغه پر له پسې ددی په زړه پوری آثار او نکلونه په جربدو او ورځپا ڼو په تیره بیا د کوچنیانو په کتابو کښې خپریدل کیدل. هغه شی چې د دغی کوچنی نابغی بد ځنی راڅخی د بیهوده او پوډ و پاراګرافو لیکل دی داخو ښی لری چې پارا ګرافو نه ئی لنډ او لوی مفهوم ونه و لری او دلنډی جملی په ترځ کښې لوی مفهوم افاده کړه شی.

---

*«اشنا مه علائی در منطق او حکمت» ددې تألیفا تو څخه په زړه پوری کتابونه دی هم په دری ژبه لیکل شویدی چې ددغه پوهاند تحقیقاتو خلاصه ګڼل کیږی.

علامه ابن‌سینا د روژی د مبارکی میاشتی په لومړی نیټه د ۴۲۷ کال د همدان په ښار کښی سترګی له جها نه پټی کړی.

دولسوالیو پېژندنه :

د انځړوال په قلم

# دارغسان ولسوالی

## غوره سرغه د دغی ولسوالی یوه پخوانۍ

### سیمه ده چه د پښتنو نیکه گان نورو سیمو ته ځنی لېږدېدلی دی

ارغسان د کندهار یوه نامتو ولسوالی او د کندهار د شمال ختیځ په پنځو سلو اس کیلومتری کی پرته ده .

د شمال خوا ته ئی د زابل د ولایت د جلدک ولسوالی ، جنوبی او ختیځ ته ئی سپین بولدک . ختیځ ته ئی

د کندهار د معروف ولسوالی او لویدیځ ته ئی د ډنډ ولسوالی د دامان علاقه داری ده .

## دارغسان نفوس :

دارغسان ولسوالی اس زره تنه نفوس لری ، او اوسیدونکی ئی قزلدرانی او په قوم پوپلزی ، بارکزی ، الکوزی ، محمدزی او

خوگیانی دی ، د محمدزو د ټبر د بلا د محمد نیکه مقبره هم دلی دی .

## نامتو کلی :

د ارغسان نامتو کلی امین کلا ، تاجاو ، سنډر زائی ، خوگیانی ، کمیل زائی ، بالاژده وام ، تحصیلداری ، سلکتو ، سرچ که

او یه ده ، ترغنک او داسی نور دی .

په دغه سیمه کی د ارغسان دود تور یزی او دغه د باړانو او

سیلاو په وخت کی د ری میاشتی او به لری او نور د وخت وچ وی ، او کرنه ئی زیاتره د کاریزونو پر او بو کیږی .

## کرنه او حاصلات :

د کرنی حاصلات ئی غنم ، اوربشی او جواری دی ، انار ، انگور او بادام ئی باغونه هم پکښی شته .

که څه هم دا د کندهار بڅه سیمه ده خوزیاته زراوره نه پکښی اوری او په دوبی کی ئی هوا ډېره څه وی .

هر کله چی د رود سیلونه راسی لا بونه و غورځوی او په مځوڅا یونو کی پر لیزونه کیږی او خټکی ئی ډېر خوږ ه دی .

د دغی ولسوالی د خلکو لوی مشکل د او بو کموالی دی او چی کال آباد او په کنده د کی پر مځی او بو سرلی کی زیات باړانونه وشی نو د غنمو آوی او للمی حاصلات ډېر څه وی .

په ارغسان کی د گورگی د او بو بندشته ډېر کلونه پخوا آباد شوی او اوس د زیات کلونو راهیسی د لای او خټو ډک او استفاده نه تری کیږی .

خو که د باړانو او سیلو پر وخت کوچنی بندونه په فنی ډول جوړ او په کارو لو یږی . او هم ئی د مځکی لاندی او بو څخه د برمو پواسطه کار و اخستل شی کرنی ته ئی گټه رسوی او د

او بو مشکل ئی تر ډېره حده پوری لیری کیدای شی .

## لاسی چاری :

ښځی او پېغلی ئی د پښتنی غالو په ډول کی مهارت لری او په تیره بیا دا ښه او ږدې غالی جوړوی .

## دود او خوږونه :

د ارغسان خلک د کندهار د نورو کلیوالی سیمو او ولسوالیو د خلکو په څېر دود او خو یونه لری .

د نجونو لوڼی د ښیر ش ژدو څخه تر څلوېښت زرو افغانیو پوری دی په ودونو او اختر ونو کی ئی ډول او هلکان . د توپک نښه ویشتل او غیږی ایستل رواج لری ، او په میلو کی سر بیره پر دی هگی جنگوی . او اسان ځغلوی .

ځوانان او حتی سپین ږیری خلک ئی د ښکار ی پر وخت مړد کی کوی .

ښځی ئی د خوشک دود په سیمه کی د اختر ونو میلی او ساتیری کوی .

د ولسوالی پر تشکیلاتو سر بیره یو صحی مرکزهم لری او د لیری او اژ دی سیمو څخه نارو غان ورته راځی .

(پاته په ۳۳ مخ کی)

(د څلرم مخ پاته)

افغانستان کې د انګلیسانو پر ضد ملي جګړې شروع شوې او په (۱۲۵۷) هجري قمري کې دغه جګړې وغځېدې او چې ته رسېدلې او په (۱۸٤۱) کال کې د سپټمبر په میاشت کې ملي مشران لکه عبدالله خان اڅکزي او امین الله خان لوګري د انګلیسانو دغه بدچال چلند نه سوای زغملای نو په دې هڅه کې سول چې تر خپل وروستي قدرت پورې

د انګلیسانو په مقابل کې د جګړې او ددوی استعمار ته خاتمه ورکې او هم دغه ملي مشرانو په خپلو منځو کې په قرآن شریف سره قسم وکې چې د خپل ژوند تر وروستي لحظې پورې که څه هم د هغوی په اولاد او مال سره وي د انګلیسانو استعمار به له منځه وړي وروسته تر دغې موافقې نورې ملي مشران لکه سکندرخان عبدالسلام خان، میر احمدخان، محمدخان محمدحسین عرض بیګي، حاجي علي خان او نور د عبدالله خان اڅکزي په کور کې سره ټول سول او په دغه غونډه کې عبدالله خان اڅکزي د انګلیسانو ظلمونه پر پښتنو باندې بیان کړل.

ده داوویل چې انګلیسان او ددوی نږدې مګاري د افغانستان د خلکو په دین او ناموس تېری کوي د عبدالله خان اڅکزي تر وینا وروسته هغه خلکو چې په دغه غونډه کې حاضر وه د اتصمیم ئې ونیوی چې باید عملي اقدامات د

انګریزانو پر ضد شروع سي امین الله خان لوګري چې یو تجربه کاره سړی و نوموړي غونډې ته ئې داسې پیشنهاد وکې (لومړی باید موږ د برنس او نورو انګلیسي منصبدارانو پر کورونو چې په ښار کې دي حمله وکړو چې د ښار په دننه کې څوک پاته نشي وروسته تر هغه به پر مکناټن او نورو هغو انګلیسانو چې په

بالاحصار او د کابل په چاردهي کې او سېدي حمله وکړو) دده دغه نظر په ټولې غونډې خوښه کړه او هم د نوموړې غونډې ټولو خلکو په قرآن شریف قسم وکې او هغه ئې لاسلیک کې د دغه پروګرام د عملي کولو نیټه ئې امین الله خان لوګري

او عبدالله خان اڅکزي ته ورو سپارل سربېره پر دې اقدامات چې په کابل کې کېدل دا پرېکړه فیصلې د انګلیسانو په مقابل کې د افغانستان په نورو برخو کې هم شروع سوي او د افغانستان په هر ګوټ کې د انګلیسانو پر ضد ملي جګړې جوړې کېدلې.

په کندهار کې اختر محمدخان زمیندار وري د انګلیسانو پر ضد جګړې شروع کې دغه رنګه وزیرو، خرګیانو او د مشرقي په سیمه کې هم د انګلیسانو پر ضد ملي قیامونه د سول په ۱۲۵۸ هجري قمري کال کې د روژې د میاشتې په ۱۷ نیټه

ټوله خلک سره د اټول سول او د ملي مشرانو په لارښودنه ئې لومړی د برنس پر کور چې د بالاحصار په پای کې د او سنۍ خرابات په سیمه کې واقع و حمله وکړه برنس او دده ورور ئې د څو تنو انګلیسي منصبدارانو او

یوزیات شمېر عسکر و سره مړه کړل او په دغه حمله کې (۷۰) زره پونډه د خزانو لاس ته ورغلل په دغه جګړه کې انګلیسانو ته ډېر مالي او ځاني تاوانونه د پښتنو د ملي مجاهدینو د خوا ځخه ورورسېدل او هم د روژې د میاشتې د ۱۷ نیټې څخه بیا تر ۲٤ نیټې پورې ملي مجاهدینو ټولې کلاوې چې د بالاحصار او انګلیسي چوڼۍ تر منځ (په شیرپور، وزیرآباد او بي بي مهرو) کښې وې

وابولي او هم ئې شاه شجاع په بالاحصار او انګلیسان ئې په خپلو چاوڼیو کې کلابند کړل ملي مجاهدینو چې د افغانستان د

هر ګوټ څخه د ا ټول سوي وه د انګلیسانو پر چاوڼیو باندې ئې سختي حملې شروع کړې لې هغه

انګلیسي عسکر چې د ملي مجاهدینو په مقابل کې جنګېدل ماتې به ئې وخوړل او بېر ته به خپلو چاوڼیو ته ننوتل په دغه وخت سردار محمد اکبرخان د بخارا د

بندیخانې څخه د اخلاص سو او افغانستان ته راغی نواب محمدزمان خان چې مشری

ئې پر غاړه اخیستې وه کله چې سردار محمد اکبرخان راورسېدی د خپلې مشرۍ حق ئې سردار محمد اکبرخان ته پرېښودی

او د ملي مجاهدینو په مابین کې داسې فیصله وشوه چې خپلو حملو ته به تر هغه وخت پورې دوام

ورکوي تر څو چې انګلیسان له منځه څخه یوسي.

کله چې مکناټن د سردار محمد اکبرخان د راتګ څخه

خبر سو ډېر پریشانه سو نو غوښتل ئې چې د سیاست د لارې څخه خپل کار مخ ته بوزي ځکه چې

انګلیسان په دې ښه پوهېدل چې په جګړه کې بیله بربادۍ څخه بل شی نه موږ په برخه نه دی

نو په دې لټه کې سول چې د سردار محمد اکبر او امین الله خان لوګري او نورو ملي مجاهدینو تر مابین

نفاق واچوی مګر بیا هم دی مقصد کی هم بریالی نه سول ځکه چی پښتنو خپل اصلی دښمن پیژندلی وو.

سردار محمد اکبرخان و مکناټن ته خبر ورکی چی زه حاضریم په عمومی مرضوعاتو

باندی مشاوره خبری وکړم او هغه وو چی د مکناټن او سردار محمداکبرخان ترمابین مجلس

شروع سو په دغه مجلس کی سردار محمداکبرخان د مکناټن د بدعهدی خبره یاده کړه مکناټن په قهر سو او پر سردار محمداکبر خان باندی ئی چاړه راوکښل

غوښتل ئی چی وزیرمحمداکبر خان په دغه چاړه ووهی مګر وزیر محمداکبرخان په چټکه چالاکی

سره پر مکناټن باندی د تو پنچی ګټ وکی مکناټن او دده ورسره ملګری ئی ووژل. کله چی دده د مرګ خبر چوڼی ته ورسیدی انګلیسی منصبداران بی له تسلیمیدو څخه بله چاره نه وه لیدله

او د وزیر اکبر خان شرطونه ئی ومنل.

هغه شرطونه داوه چی انګلیسی فوجونه باید سمدستی

د افغانستان څخه ووځی، د انګلیسانو قولی توپخانی دی افغانانو ته وسپارل شی یوه ځله

انګلیسی مشران، ښځی او کوچنیان دی د یرغمل په نامه د امیر دوست محمدخان تر راتګ پوری د

افغانانو سره وی. انګلیسی قواوو دغو (۱٤) لکو ورو تادیه چی پخوا مکناټن په ځان منلی وه په خپله غاړه ومنل.

د ۱۸٤۲ م کال د جنوری په ٦ نیټه انګلیسی عسکر د جنرال الفنسټون په لارښوونه د لاسلیک سری تړون

څخه مخالفت وکی (۹) عرادی توپونه او تورحربی سامانونه ئی د خپل ځان سره یووړل او پوازی پنځه توپونه ئی

افغانانو ته وسپارل. انګلیسی عسکرو داسی تصمیم نیولی وو چی په جلال آباد کی د خپلو نورو عسکرو سره یو ځای

شی مګر په دغه وخت کی ملی مجاهدینو ښه موقع پیدا کړی وه پر انګلیسی عسکرو باندی ئی سختی حملی شروع

کړی لی او ټول ئی مړه کړل. یوازی ډاکټر برایډن د مرګ پر حال ځان جلال آباد ته ورساوه او خپلو نورو

ملګرو ته ئی د انګلیسی عسکر د تباهی خبر ورکی. په دی ترتیب د پښتنو ملی مبارزینو خپله پا که خاوره د انګلیسی

استعمارګرانو له لاسه څخه خلاصه کړه او سختی ماتی ئی ورکړی. (پای)

د (سرمقالی پاته)

# د کندهار د وړیو...

د کندهار د وړیو د اوبدلو فابریکه په ۱۳۲۲ کال کی د پنځه دیرشو ملیونو افغانیو په پانګه پرانستل شوی

او په هغی کی د وړیو شکلی توسان هر ډول کشمیری او سرج توایدیدل ۲۸۰ تنو په هغو کی سهم درلود او د هر سهم بیه زر افغانی وه

د دغی فابریکی د وړینو کشمیری ډیری ښی او هر چا چی وس درلودی در یشانی او بالاپوښونه ئی ځینی جوړول او

پخوانی سرج هم ښه بازار درلودی خو اوس د بده مرغه دغه فابریکه

ډاکتوړ: زیارونکی (ح)

# زما خوښی

که ټول ستوری د طلا د سکو په ډول راوبخښی.

که لکه سلیمان ما ته پرېوانو او مرغانو د فرمان روائی واک را کړی.

که چیری حضرت خضر (ع) د آب حیات وچینی ته زما لارښوونه وکړی او ماته تل ژوندراوبخښی.

که ټول دنړۍ نه بشری افتخارات او امتیازونه یو ځای راوسپاری.

نه خوشحالیږم

خو که وکولای سم چی د یوه ضعیفه سړی، خوږ ځان د مرګ له خطر څخه وژغورم، یا د یوه یتیم له ښو څخه یو څرز وکاږم یا هم د یوه اړ او محتاج پرشونډو د خوښی مسکا راولم نو دا به زما خوښی وی.

دغه الیته او بدلی ده او لوی علت ئی دادی چی په فابریکه کی د ځلور دیرش ملیونو افغانیو سرچوړ باته پانګه ئی په بنده ده او هغه نه خرڅیږی.

موږ د پلان، تجارت، کانو او صنایعو دو زارتونو څخه غواړو چی د دغی فابریکی د فعال کولو د پاره چی یو لوی کتنی او مطالعی هم په دغه برخه کی شوی دی لازم او ګټور اقدامات وکړی څو چی کله دای کول دغه ملی پانګه مو د تلف کیدو څخه را وګرزی او حتی به فعال کیدلو سره ئی زموږ د کشمیری اودلو صنعت پیاوړی او اقتصاد مو تقویه شی.

غلام محی الدین «ایوبر»

دوی دې ته مجبوره سول چې د خپل کښت د پاره ځمکې پیدا کې نو هغه وچې د ځنګلو درختې ای وکښلې او په هغو ځمکو کې بهٔ ای کښت

کاوه دوه یا درې کاله چې بهٔ ای پر هغه ځمکه باندې کښت وکې او وروسته به بیرته هغه درختې د دوهم ځل د پاره راشنې سوې

کوم چې دوی کښلې وې نو دوی به هغه ځمکې پرېښولې او بلې خوا ته بهٔ ای سفر وکې چې بل ځای کښت وکې او د خپل ژوند احتیاجات پوره کې.

که څه هم دغه روش او د د تراوسه پورې په استوائي منطقو یعنې د آسیا او افریقا په براعظمو کې د کوچنیو قبائلو او اخوا څخه شته

پس دا ویلای سو چې د افریقا د براعظم ځنګلونه د پخوانیو انسانانو په ذریعه د مابین څخه تللي ؤ او س د دوهم ځل د پاره

بیرته راشنه سوي دي د آسیا او افریقا براعظمونه نسبت د امریکا

و براعظم ته د انسانانو د تمدن په سبب ډیر پخواني او انسانانو

ډیر ژوند پکښې کړی دی او دغه براعظمونه د خلکو د استوګنې په نسبت ښهٔ او پوره تاریخ لري مګر د امریکا براعظم د نفوس د استوګنې په نسبت لنډ تاریخ لري.

د امریکا په براعظم کې بیله د دو دو د غالهٔ د څخه چې انسانانو لاس په وهلو په نوره ځمکه باندې ئې لاس نه دی وهل سوی او پر خپل پخوانی شکل باندې پاته دي.

پخوانیو انسانانو سربیره پر دې چې خپلې اړتیاوې دې د ښکار په ذریعه پوره کې د کښت څخه ئې هم استفاده کول.

مګر د نړۍ زیات خلک په دې لټه کې دي چې طبیعت د خپلې استفادې لاندې راولي، انسانان د خپل کار او کوښښ په ذریعه

دې نتیجې ته ورسیدل چې ځینو فزیکو عواملو ته دی تغیر ورکی.

## ۱- کانالونه:

هغو انسانانو چې د مدیترانې په برخه کې ژوند کاوه دوی په

دې لټه کې سول چې خپل تجارتي مالونه دوه چې د لارې څخه د بحر د لارې پورې خوا او بلې خوا ته پورې ځکه چې دوی پوهیدل چې

د دغو مالو وړل د وچې د لارې څخه نسبت د بحرو لارې ته ډیر ژر دغوالهٔ ی نو په همدې سبب سره دوی مجبور سول چې د خپلو

مال د وړلو د پاره کانالونه وکیني.

پو د هغو کانالو څخه چې د سویز کانال د مخه پخوانیو مصریانو وکیندی د نومړي کانال په ذریعهٔ ئې د احمر بحیره

د مدیترانې د بحیرې سره ونښلول.

د هم کانال ئې هغه وخت وکیندی کله چې پارسیانو پر یونانیانو باندې په ۴۹۰ق م کال کې حمله وکړه.

اولین بحري او عصري کانال چې فرانسویانو په ۱۸۶۰-۱۸۶۹ کلو کې وکیندی هغه د سویز کانال ؤ. کوم وخت چې فرانسویانو د کانال په کیندلو کې مهارت حاصل کی نو ئې وغوښتل چې د پاناما کانال هم وکاږي مګر هغه

په ۱۹۱۴ کال کې امریکایانو وکیندی کوم وخت چې د دریابونو د پراخوالي و موندی نو لوی ښارونهٔ ی د بحرو سره ونښلول مصنوعي لوی لوی

ښارونهٔ ی جوړ کړل د مانچسټر کانال په انګلستان، د هوستون کانال د امریکا د تکساس په سیمه کې د لویو کانالو د جملې

څخه دي نوموړي کانالونه ۳۵ میله اوږدوالی لري چې لوی ښارونهٔ ی د سیندو سره ونښلولي دي او دغه رنګه

په اروپا کې ځینې نور کانالونه سته لکه د راین کانال چې د امستردام او بروسل ښارونه د شمالي بحیرې سره ښلوي

او هم دغه رنګه په افریقا کې د ابیجان په ښار کې په ۱۹۵۰ کال یو کانال د ۲ میلو په اوږدوالي وکیندل سو.

## تونلونه:

د ځمکې لاندې لارې او کرښې خلکو په ډیرو او صنعتي لویو لویو ښارو کې کیندل سوي دي چې د دغه

لارو او کرښو په کیندلو سره د ترافیکي پېښو مخنیوی وکې د نیویارک په ښار کې د ۲۷۱۵ میلو په اوږدوالي ترمځکې

لاندې لار کیندل سوې ده چې دغه په نړۍ کې لمړۍ درجه ترمځکې لاندې لار ده او ډیر شهرت لري دغه رنګه د پاریس په ښار کې په ۱۰۰۰ میله اوږدوالي د ځمکې لاندې لار سته په لندن کې د ۹۶ میلو په اوږدوالي ترمځکې لاندې لار سته او د نړۍ په لویو لویو ښارو کې لکه توکیو، ګلاسګو، برلن، بوداپست او د ماسکو په ښارو کې ترمځکې لاندې کرښې کیندل سوې دي.

پښتو کونکی مریانی:

# پر طبیعت او فزیکي عواملو باندې

# د انسانانو تاثیر

د انسانانو ژوند او زحمت د طبیعت په بدلون کې بې نتیجې نه دی.

انسانانو د خپلو هیلو سره سم د ځمکې او طبیعت ظاهري شکل ته تغیر ورکړی دی.

لومړنیو انسانانو په لږ اندازه سره د ځمکې سطح او طبیعت ته تغیر ورکړ؛ خو

هر څومره چې دوی د تمدن خوا ته ودې کېدل هغومره به ئې د ځمکې سطح او طبیعت ته تغیر ورکوی.

انسانان د پیدایښت د ورځې څخه بیا تراوسه پورې په دې نه دي بریالي سوي چې څینو

فزیکي عواملو ته دې تغیر ورکړي چې هغه فزیکي عوامل دا دي لکه د باد الوتل، د حرارت

درجې لږ والی او کښته والی او د باران اورول او نه اورېدل، مګر بیا هم انسانانو

د خپل کار او فعالیت په ذریعه سره و کولای سوای چې پر څینو فزیکي عواملو باندې دې بریالي سي چې هغه عوامل دا دي:

دنیا تاتو او درختو شنه کول او د هغو په ذریعه سره هوا مرطوبه کول، شاړې ځمکې آبادول- د حیواناتو او کیمیاوي سرې او اصلاح شوي تخم استعمالول- کانو نه دایستل او د خپلو

مقصدو د پاره په کار اچول- دا بو بندونه او و یالې جوړول- وحشي حیوانات اهلي کول او د اسې نور.

په هغو ځایو کې چې انسانانو پخوا ژوند کړی دی او اوس لوی ټولنې به هغه ځایو کې تیري سوېدي نو په هغو

ځمکو کې یو ښکاره تحول لیدل کېږي د هغو خلکو کار او کسب کښت او چوپاني ده- دوی به د خپل ژوند د پاره والی

د پاره د یوه ځای څخه بل ځای ته تلل او په هغو ځایو کې به ئې د ژوند وسایل برابرول نو د دوی د غه مهاجرت د ځمکې پر سطح او طبیعت باندې یو څه تحول راوستی.

مګر کوم وخت چې انسانانو د خپل ژوند او هوسائی د پاره ماشینونه جوړ کړل د دغو موټرو او ماشینو په ذریعه ئې

وکولای سوای چې شاړې ځمکې آبادې کړي او د کښتو څخه ئې ډېر حاصلات واخلي، میوه لرونکي او بې میوې

درختې ئې شنې کړې چې د میوو او لرګو څخه ئې استفاده وکړي. هغه پخوانۍ تمدنونه چې پخوانیو انسانانو په ځینو ځایو کې

د تاریخي آثارو په ډول پرېښي دي په شمالي افریقا کې د مصر، په جنوبي امریکا کې مایا، د پیرو، انهرین په برخه کې (سومري، اتوری کلدانی) او د آرین او چین

پخوانی تمدنونه دي. په هغو ځمکو کې چې اقلیم د کښت او کار کولو

د پاره نه ؤ مساعد نو انسانانو هغو

ځمکو ته کومه توجه نه درلوده او د هغو سیمو د انسانانو په واسطه کوم تحول نه دی لیدل سوی.

د غه رنګه د آسیا د براعظم په شمالي ځنګلو کې ترکاله پخوا خلکو ښکار کاوه او ګوزن

به ئې تربیه کول. د افوس د لږ والی په سبب د محیط پر لیز تحول باندې کامیاب سوي ؤ او دوی د خپلو

ځانو څخه لږ آثار د یادګار په ډول پرېښي دي.

او هم د استوا په هغو برخو کې چې باران ډېر اورېدی او زیات شمېر ځنګلونه پکښې کې

شنه ؤ نو په هغو سیمو کې هلې خلک او سېدل د غولې خلکو نسوای کولای چې د په ځای

محیط ته دې تغیر ورکي ځکه چې د دوی کار او کسب زراعت ؤ نو په دې سبب سره به د یوه ځای څخه

بل ځای ته تلل څو په آخره کې،

لوی او مهمترین د اوسپنې تونل د اول ځل د پاره چې ۸۰۹۸ میله اوږد والی لري
په ۱۸۵۷-۱۸۷۱ کالو کې د فرانسې او ایټالیا ترمابین وکیندل شو او هم
دغه رنګه یو بل تونل د ۳۶۰۶ میله اوږد والي په اندازه د سویس او اتریش
ترمابین وکیندل شو. او دا یې په زیاتو هیوادو کې د اوسپنې تونلونه
کیندل شوي دي. پرته هغه فعالیتونه چې بیان شول ټول د انسانانو د کار
او زحمت نتیجه ده او یو تحول ئې په طبیعت کې راوستلی دی دغه فعالیتونه
په هغو هیوادو کې سویدي چې طبیعي منابع په لاس کې لري او د خپل فکر
د انکشاف په ذریعه صرفوي د هغو څخه کار اخستل دي او زیاته ګټه ئې
هغې کړې ده.

دغه مو و بل چې فرانسویانو د سویز کانال او امریکایانو د پانامې
کانال و کیندی، دغه رنګه انګلیسانو په خپل وار د زیاتې د اوسپنې
لارې جوړې کړې او د اوپانډورو هیوادو چې لوموړنۍ ئې ذکر شوی
طبیعت ته ئې ډېر تحول ورکړی د جاپان هیواد د اروپائی تمدن په لار پوونه
ان ورځ ډېر مخ ته تللی دی او د طبیعت پر ډېرو څېا او ... ئې
بریالی شوېدی.

پخوانیو د اوسپنې لارې ډېرې په غربي هیوادو کې جوړې شوېدي
مګر بندونه دې په زیاتو هیوادو کې کیندل شوي دي. پخوانیو مصریانو،
چینایانو او هندیانو کانالونه کیندل چې د هغو کانالو د چلې څخه ترا اوسه
پورې په چین کې د هوانګهو او نورو رودو باندې د یادګار په ډول
پاتې دي دغه رنګه د نیل ـ سیند د جلي او فرات پخوانی تمدنونه د لوموړو
بندو د جوړولو څخه معلومیږي چې انسانان پر طبیعت باندې تر ډېرې
اندازې پورې بریالي ؤ او هم په همغو ټولو هیوادو کې لګ د چین په
هیواد کې دوی ـ هوای ـ هوانګهو او من ـ سندو بندونه، په امریکا کې د
میسیسپي ـ مسوری ـ او هیو ـ الیوایزاو رودو ـ سن جان د سندو بندونه ـ په افریقا کې
د یو ـ اډیج ـ بر پښتنا د سندو بندونه ـ په غربي پاکستان کې د سند ـ په هند کې
د ګنګا او په مصر کې د نیل سیند د نیره دلوبو بندو څخه دي چې په اوسني
او پخوانی ډول ئې پر لوموړو رودو باندې جوړ کړېدي او هم یو زیات
شمیر کوچنی بندونه ئې د خپلو ځمکو او کښتو د اباد ولو د پاره جوړ کړې دي.

همدغه رنګه انسانانو د سندو څخه زیاته ګټه کړېده ځکه چې په هغو کې
ماهیان ایسي او هم ئې یو زیات شمیر ځمکې د سندو څخه د کښت او کرونې د
پاره لاس ته راوستلي دي هالنډیانو په ۱۲۰۰ میلادي کال کې ۰۰۰و۰۰۰و۱ جریبه
ځمکه د سندو څخه پلاس راوړل او جاپانیانو په د اتلوانکو ... او ... کې
(۳۰۰۰۰۰ یا ۰۰۰و۴۰۰) جریبه ځمکه د سندو څخه په لاس راوړې. په انګلستان کې ئې
د لندن د ښار شمالي برخه د سند څخه په لاس راوړې ده. ډنمارک او غربي المان
د سند څخه د ومره ځمکه په لاس راوړل چې اوږد والي ئې د شمالي بحر ی
پورې رسیږي.

همدا شان انسانانو د چاردوئه
جوړولو سره طبیعت او د ځمکې
سطحې ته تحول ورکړی دی
انسانانو لوی لوی چاردونه او
تمیرونه جوړ کړل چې د ځمکې
د سطحې زیاته برخه ئې نیولې ده
او د هغو تمیرو یو زیات تحول د
ځمکې پر سطح باندې پیښ کې
د هغو تمیرو او چاردوبه جوړولو
سره ئې یوازې طبیعي او پخوانی
نباتات د منځه ولاړل بلکه په
هغو کې ډېر تغیر راغلی. انسانانو
د خپل کار او کوښښ په ذریعه
سره دولوا و رودواو په د هغه
تسخیر کړي وحشي حیوانات ئې
اهلي کړل او یا ئې د مابین څخه
یووړل مضر حشرات ئې ورک کړل
او د ځمکې لاندې شیان ئې
راوکښل او د هغو نه د هغو د
پاره ئې په کار واچول. په هره
اندازه چې انسانان متمدن کیدل
په هغه اندازه سره د دوی په
مابین کې رقابت پیدا کیدی هر
دغه رقابت په سبب انسانان
په دې سره بریالي شول چې
لوی لوی بندونه، چاردونه او
اسمان خراش تعمیر و نه ئې
جوړ کړل. او س انسانان
د کوښښ کوي چې سر بیره پر دې
چې د ځمکې څخه استفاده کوي
دې ته متوجه شول چې
د سپوږمۍ کره هم څخه ملي
استفادې له پاره مساعده کي
له دې امله امریکایانو په
۱۹۶۹ کال ۲۱ـ۱ پولو د سپوږمۍ

کړی ته وا له زول او د قومونو حل
د پاره د سپوږمۍ په کره کې
امریکایی کیهان نوردانو میسترا لګ
او الډرین قدمونه کښیښودل

ځنګلونه:

انسانانو د ځنګلو په برخه
کې هم ډیر تحول راوستلی دی.
ډیر ځنګلونه ئې وکښل او د
هغو ځنګلو ځمکې ئې وکرلې
بلکې میوه لرونکې درختې پکښې
شنې کړې لیکن بیا هم هغه ځنګلونه
په طبیعي حالت سره پاته دي چې
انسانانو په هغه کې کوم کار
نه دی کړی او نه یې لاس ور ته
بیدا شوی دی. انسانانو ځنګلونه

د دوو مقصدو د پاره کښلي دي
یو دا چې د هغو کښل سوي ځنګلو
ځمکې به ئې کرلې او بیا به ئې د
هغو د لرګو څخه شیان جوړول
او بیا به ئې سوځول:

نن ورځ ډېر ځای کې زیات
هیوادونه په کال ۳۰ کې ځمکې کړې
او خپل د ژوندانه اړتیاوې په
برابرولو د کیمیایي سرې په
استعمالولو سره ئې حاصلاتو کې
هم بدلون راوستلی دی.

په هغو هیوادو کې چې د
زراعت ځمکې ئې ډیرې وې او هغه
ئې په آبادۍ کې بدلې او په
حاصلات ځنې ناخلي هر څومره
چې ساینس مخ ته ځي په هغه اندازه
د ځمکو حاصلات زیاتیږي:

داوبولګولو سیستم:

د نړۍ داوبولګولو کانالونه
که لوی دي او که کوچني
تراوسه پورې نه دي اندازه
سوي که څه هم په دغه باره کې
ځینې احصائیې ترتیب سوې دي

مګر بیا هم د حقیقت څخه لرې دي
دغه رنګه د پر له پسې احصائیو څخه چې
د چین په هیوادو کې د اوبولګولو
د کانالو په نسبت سوې دي د ۷۰۰۰ څخه
تر ۲۰۰۰۰ میلو پورې اټکل سوي دي

او دغه احصائیه لږ ډیره د حقیقت نه ده
او هم د چین د هیواد جنوبي برخه
یوازې حصه ده چې نسبت د نورو
برخو ته ډیر داوبولګولو کانالونه

لري. داوبولګولو اوږده کانالونه
په هغو ځایو کې ډیر کیندل کیږي
چې د وریجو کښت ډیر پکښې کیږي.

په هند او پاکستان کې داوبو
لګولو کانالونه (۷۵۰۰۰) میله اټکل
سوي دي او دغه کانالونه (۴۵۰۰۰۰۰)

جریب ځمکه اوبه کوي د غربي پاکستان
په ډیرو برخو کې وچه او لږ زیات دي
نو په دغه نسبت سره غربي پاکستان
بو زیات شمیر داوبولګولو کانالو ته
ضرورت لري. سربیره پر هغه چې د هند
په هیواد کې په یوه کال کې زیات
باران اوري او ری چې د هغو باران اندازه

د ۳۰ تر ۴۰ انچو پورې رسیږي مګر
کوم وخت چې موسم وچ وي داوبولګولو

د پاره کانالونو احتیاج لري چې د هغو
په ذریعه سره خپل کښتونه اوبه کوي.

دامریکا غربي برخه داوبولګولو
کانال لري چې د ټولو کانال د ۱۴۵۰۰۰
میلو په اندازه سره کیندل سوي دي.

په وسطي قرن کې د عربو څخه
څخه په ۹۱۱ میلادي کال د اسپانیا
په هیواد کې د اوبولګولو کانال

کیندل سوی دی او هم په فرانسه کې
د دورانس پر رود باندې په ۱۱۷۱
میلادي کال کې کانال کیندل سوی دی

د منځني ختیځ په مختلفو برخو کې
داوبولګولو کانالونه کیندل
سوي دي چې داوموږ کانالو
په ذریعه سره څومره ځمکې
اوبه کوي.

دغه رنګه د انسانانو تاثیر
پر حیواناتو باندې هم کم نه
دی. انسانانو د خپل کوښښ په
ذریعه د ځنګلي حیواناتو نسلونه
د مابین څخه یوړل او د هغو
پر ځای ئې نوي او اصلاح سوي
نسلونه مابین ته راوړل او هم ئې
د حیواناتو نسلونو ته تحول ورکی
او هغه ئې په طریقه سره ورو ورو
او شمیر ئې ور ډیر کی. که څه هم
تراوسه پورې ځینې فزیکي عوامل
سته چې انسانان ئې کولای چې
هغه ته د تغیر ور کړي مګر داسې
وخت به راسي چې انسانان پر ټولو
هغو عواملو باندې بریالي سي
دا ځکه چې کامیابي او ځواک
په علم پورې تړلې ده په هغه اندازه
چې په یوه ټولنه کې علم مخ ته
ځي په هغه مره پیمانه سره
انسانان پر خپلو مشکلاتو کامیاب
کیږي او هم آسوده او آرام وي
او هیڅ یو مشکل د دوی مخ
نه شي نیولای.

# د کوچنیانو په باره کې...

همدارنګه دې ماشومان د
مجهولو شیانو لټې ته پ
رېږدو او اودونه‌وته بیرول سي ځکه
د اشیان د ماشومانو د زده کړې

لوسو بی لوی دی که دغې مجهولو
شیانو پوهېدل همدا راز مجهول
پاته سي په ماشومانو کې روحي

پېچې منځ ته راوړي او د یاست
یا واقعیت بېن اسی کیدای د شیانو
په شمېرولو کې باید څه نه څه
آشنائي ولري ځکه د کار د

ماشوم معلومات زیاتوي د کلیمو
ذخیره ئې ډېرېږي.

د دري کلنۍ څخه ترشپږ
کلنۍ پوري ماشوم د خپل شاوخوا
په باره کې سوالونه او تپوسونه

کوي او دهغو اکثر دوامي یې
شکل کوي هم هغه شیان
که شیان وي که انسانان
یا حیوانان نسبت ورځان ته

تشخیصوي مثلاً نوکر وان او
دکاندار پېژني هغه خپله مفکوره
ددې دپاره تشکیلوي او هغه

شیان سنجوي چې وروسته د
ژوند په دوره کې ورته پېښېږي
د هغې سوالي او پوهې ظرفیت چې
ده سره موجود دی د هغه پواسطه

د خلکو او شیانو سره تجربې
اجرا کوي او دهغو څخه نتیجه
راباسي د ماشوم اکثر د لوبو
خلکو سره داسې وي چې دی د

اما بې وخت کې ولوبانو ته د اېښکاره
کوي چې لوی سوي دي.

وبه ګورو چې د لوبو خاصیتونو
سره د ماشومانو د روزنې مشکلات
ووالدینو ته ترکومې اندازې ډېر دي

که یو ماشوم د سایکالوژی (روح
پېژندنې) په اساس د روزنې تر آزموینو
ودې ظرفیت ته ئې رسیدلی داسې نتیجه
لاس ته راځي چې والدینو د خپل ماشوم

په روزنه کې پوره کوښښ ندی کړی
یعنې بریالی ماشوم ئې ندی روزلی
او یو مفید غړی ئې ټولنې ته

ندی تقدیم کړی همدا سبب دی چې
په اکثرو ممالکو کې یو څه مرحله کښې
ماشوم د والدینو څخه جلا کوي او
مستقیماً ئې دوی کفونو تر تربیې لاندې

نیسي ځکه هغوی عقیده لري چې
مور او پلار هیڅ وخت د مسلکي ښوونکو
او نرسانو په پیمانه د ماشومانو

په روزنه کې وارد ندي. په هر صورت
که مېندې او پلرونه وغواړي چې د
خپلو ماشومانو روزنه مستقیماً په خپل
لاس کې ونیسي باید د خپل وخت یوه

ډېره برخه دوی په روزنه کې
مصرف کړي او باید د بازی مکمل
او علمي پروګرامونه ورته تهیه کړي.

په دې دوره کې کوچنیان اجتماعي سوي
او په ګروپي بازیو کې شرکت کوي.

ددې حس د پیدا کیدو دپاره هم
باید د ماشومانو سره کوښښ وسي.

علمي او د لغاتو ذخیرې دی د
حیواناتو او نورو انساني کارونو
د لیدلو څخه و ماشومانو ته
آماده سي او والدین باید په

اکثرو موضوعاتو کې ماشوم ته
حق ورکړي په هغو شیانو کې چې
لازم وي اجرا کړي بازیچې هم

باید په دې دوره کې یو مغلق
شکل واخلي او هم باید د تفکر
او کار دپاره یو سنجولی سوی
عملیه وي. ماشوم په دې مرحله کې

د تصویرونو د رسمولو قادر سي کیږي
البته داسې چې تصویر او اصل شی
تر یوې اندازې شباهت ولري

دوی په دې وخت کې د دسپلین
پاکی او نظم سره علاقه پیدا کوي

او د تنقید سره مخالفت ښکاره
کوي تر اولې دورې ډېره حوصله

د کار په کولو کې پیدا کوي
محبت ئې د مېندو او پلرو سره
پیدا سوی وي د مور او پلار څخه

هم دغې علاقې او محبت توقع لري
کوښښ کوي چې بشپړه اطلاع وي
د خپلو فعالیتو په باره کې
مور او پلار ته ورکړي
مور او پلار ته په کنجکاوی سره
هغه شیان چې ئې لیدلي دي بیانوي.
البته تشویق د ماشوم یکاوکې
ډېر زړول لري د جایزو، سوغاتونو

او بخششونو څخه خوند اخلي
په دې باره کې چې آیا مور او پلار

ووسره مینه لري که په ډېرې تجربې سرته ورسوي په بدو کارو او د شیانو په ماتید و سره متأثره کیږي د تهدید هغه لی

په ډېر اعې د ناوړه کارونو هغه په هغو کې شرم پیدا کیږي، خپل مقابل جنس هم پېژني کرچې

د جنسي موضوعاتو هغه پرده نه وي خبر او ددې موضوع د پوهېدلو د پاره ډېره هڅه کوي نو هغه د مور او پلار

وقولو ته کانو ته توجه وي د شپږ کلنۍ هغه بیا تر دوولس کلنۍ پورې ماشوم د والدینو نږې

پر ېږدي او په خپل ژوند کې واقعیت بین کیږي دی په مهارت او همت کار کوي او بریالیتوب ته ضرورت حس کوي چې د خپلو بازیو

او مکتبي ملګرو تر منځ بریالی وي نو ددې کار د پاره تشویق یو ضروري شی ګڼل کیږي .

د پوره تنیو خصوصیاتو په لیدلو سره د ماشومانو نړی بدلون موندي او ماشومان د حقیقي شیانو په لیدلو سره د مجبو لو

او مو دا لوسره آشنا کیږي ښوونکی، او د ښوونځي ملګري ددوی د پاره یو نوی نړی شمیرل

کیږي ددې سبب د علمي او منظمو پروګرامو ته ضرورت لري

چې ددې د فعالیتو ساحه پراخه او و مهم کارونه ئي رهنمائي کړي

که والدین وغواړي چې بیا هم دوی علماً رهنمائي کړي خپله

جدي توجه د والدینو غوا ته را ګسر هوی او کـه

داورته ښکاره سې چې والدین ئې له معلومات لري کوښښ کوي چې خپل زده کړې مواد و کورنۍ او والدینو ته ورو ښیئي او والدین هم په خپلو فعالیتونو کې شریکوي که والدین ودوی ته د ښوونې قابلیت و نه لري نو لازمه ده چې د خپلو ماشومانو وتجربو ته په دقت غور سي او هم د خپلو ماشومانو

په هکله د ډېرو معلوماتو د پاره باید د ښوونځي د ادارې سره په هر وخت په تماس کې وي او کوښښ دې وکي چې د خپلو کوچنیانو د تدریس او بازۍ وسایل ور آماده کړي . پدې موضوع کې په ماشومانو کې د سپماحس تقویه کیږي .

د هغو شیانو سره چې لري ئې علاقه پیدا کوي، ښوونکی مور او پلار کولای سي چې دا حس ښه تر اپه هغو کې تقویه کړي څرنګه چې ماشومان واقعیت بین سوي وي نو دروغ او خطا ایستل ددوی روحاً متأثره کوي او دا تأثیر ئې د ښوونکو یا مور او پلار په لږ غفلت سره ډېر بېږي نو تدریس باید تشویق کوونکی وي

که مور او پلار د خپلو ماشومانو په پوهه لي نفرت هدرس سره پوه یا خبر سي نو لازمه ده چې پدې باره کې د ښوونځي ادارې ته مراجعه وکړي او هغوی ددې موضوع هغه خبر کاندي او ښوونکی هم باید دا پرابلم جدي و ګڼي

او په حلولو کې ئې برخه وکړي مور او پلار باید خپل ماشومان منع نه کړي چې ددې په ګرېږ ډول بازي کوي او یا د نورو ملګرو سره کار او مناقشې کوي

د ښاروالۍ ملي سازمانونه باید د ښار په هره برخه کې د ماشومانو د جسمي پرورښت او اجتماعي انکشاف د پاره د تفریح ځایونه جوړه او کورنۍ او

د خپلې ټولنې د ماشومانو سره پدې وسیله کومک وکړي . په ښوونځیو کې هم ددې د پاره چې په شاګردانو کې د بریالیتوب او د رقابت حس د وي په جسمي مهارتو کې تقویه سي باید د ګروپي سپورتونو او بازیو وسایل آماده سي ، د ښاروالۍ په

سازمانو او ښوونځیو کې باید د ماشومانو د پاره کتابخانې هم وي چې د مختلفو علومو قصې د تصویرونو سره د کوچنیانو د اسویې د لوړیدو د پاره آماده کړي . پدې سن کې دې ډېر کوښښ وسي چې مورنۍ ژبه تقویه سي ښوونکی هم باید د ماشومانو په مورنۍ ژبه پوه وي مور او پلار هم باید

خبرې په علمي توګه و کړي او نا مانوس او غیر علمي کلمو او خبرو هغه دې پرهیز وکړي، د مطبوعاتو او معارف موسسې باید د ماشومانو د علمي سویې د لوړیدو د پاره د ابتدائي ښوونکو کارونه او اجتماعي فعالیتونه و ګوري

ډېر مجلسونه او رهنمائي دې ور تاوسي او په کارونه دې تشویق سي د روحي او اقتصادي پلوه دې د ابتدائي ښوونکو سره ډېره مرسته وسي ترڅو چې آرام او په ډېر بریالیتوب سره ددې سن د کوچنیانو په روزنه پیل وکړي صحي معاینات دې د ماشومانو د سترګو، غوږو او نورو اعضاو وسي چې د انواقص د کوچنیانو په درس کې خنډ رانولي .

په هغو کلو کې چې بلوغ ته رسیږي د ماشوم احساس فرق کوي او روح پېژندونکو دادوره یوه بحراني دوره بللې ده او په ددې عقیده دي چې

(نور په ۳۸ مخ کې)

د (۱۳مخ پاته)

# دزینب هوتکی ...

ژباعلومی د سپورت په شکله وویل چې اوس په دې ښوونځی کښې نجونې په آزاده توګه د والیبال په سپورت کې ګډون لري او د هغه ټول سامان او لوازم هم د ښوونځي په لګښت برابر شوی دی.

دا ښوونځی اوس یوه کتابخانې ته اړه تیا لري که څه هم دا کتابخانه د ورمره لویه او مجهزه نه ده خو بیا هم په هغو کتابونو چې د صنف کړلای شو چې د شاګردانو په اوسنی ژوند کښې د هغو له محتویاتو څخه ښه استفاده وکړو.

د زینب هوتکی منځنی ښوونځی (۱۷) ځاکې لري چې ودانې ئې د پوهنې د لوی مدیریت له خوا برابره شوی ده.

ژباعلومی په دې ښوونځی کښې د درسي موادو نه شته والی او مشکلاتو په باره کې د اسې وویل چې اوس په کافی اندازه درسي کتابونه نلرو، په ښوونځی کښې د درسي او تعلیمي چارو د ښه کیدو او د شاګردانو د سوبې د لاره تیا په شکله عینی تربیوی او تعلیمي کنفرانسو ته ضرورت دی.

د شاګردانو د عملي چارو پرمخ بیولو د پاره لابراتوارو ته ضرورت سته او اوس د دغی ښوونځی شاملان یا د ژرغونې لیسې ته ځی یا عالی دارالمعلمین ته مراجعه کوی.

دزینب هوتکی د ښوونځی آمری ژباعلومی زیاته کړه چې د یوی شاګردی د تربیتی چارو مسئول په لمړی درجه د هغی والدین دی که یو شاګرد د خپل کور او فامیلی محیط کی ښه او درست تربیه شی نو د هغه د تعلیمي چارو پرمخ بیول هم آسانه کار دی او که د شاګردی د کورنی تربیه ښه نه وی نو په ښوونځی کښې د هغه د تربیې او اصلاح د پاره مشکلات منځ ته راځی.

ژباعلومی عقیده لری چې په ښوونځی کښې باید د ښې سوبې ښوونکی او با پنده شاګردانې وی تر څو چې د ښوونځی شاملان او ورو سته له هغه د ارغان دا رسنی ټولنې د ښو او لایقو عناصرو په حیث ټولنې ته وړاندې سی.

د (۳۴مخ پاته)

# د ارغسان ولسوالی ...

د ولسوالی په مرکز کې ئې یو بازار هم شته چې اتیا دکانونه لري.

په ارغسان کې زر کې او سیبی مونډل کیږی، خلک ئې څه مالداری او څاروی هم لري.

غوره مرغه په ارغسان کې ده او له دغه ځای څخه څو بیړی د مڼه پښتنا نه ختیځ او نه تر محکوم پښتنو نستان پیښو رپوری لیږدیدلی دی.

پوهنه:

د ارغسان په مرکز کی یو منځنی ښوونځی شته چې د محمد نیکه په نامه یادیږی، یو سر ښوونکی اته تنه ښوونکی او یو سلو شپیته تنه زده کوونکی لری.

د دغی ولسوالی په اوو لویو کلیو کی اوه کیلوالی ښوونځی شته چې د ټولو زده کوونکو شمیر ئې (۲۰۰) تنو ته رسیږی د غه ښوونځی دا دی: د تو کلیوالی دری معلمه ښوونځی، د تو غوړی دری معلمه ښوونځی، د کرت دوه معلمه ښوونځی، د تانکه کار یو دوه معلمه ښوونځی، د شیخ زائی یو معلمه ښوونځی، د بلخیر زائی یو معلمه ښوونځی او د آهو چشمې یو معلمه ښوونځی دی.

مصاحبه کوونکی چاړباغی :

# محمد مهدي کوچۍ کش و پیژنئ

د هر کلونو راپه دېخوا ژموږ د هیواد د ښارونو او هم د کوچنیو د ژمنتونو په اثر د هیواد په بېلو بېلو برخو کې په هره ورځ کې دا سې کاسبان منځ ته راغلي چې د هغو فعالیت په سبب ژموږ زیاته اندازه اسعار چې د باندنیو هیوادو ته تله او س ژموږ په خپل هیواد کې پاته کېږي .

دادي نن د دغو کاریګرانو له جملې څخه د کندهار په ولایت کې د بودیرش کلن کوچۍ کش ښاغلي محمد مهدي د محمد ایوب د زوی سره یوه لنډه مرکه کوو .

استاد محمد مهدي چې د ده له قوله د دېرش کلن دی د کندهار د ښار په کابل بازار کې د محمد افضل په سرای کې د کوچۍ کشۍ دوکان لري .



محمد مهدي کوچۍ کش په خپله دستګاه کې د موټرد رویت د ترمیم په حال کې لیدل کېږي

نوموړي استاد د یوې پوښتنې په جواب کې وویل : په لس کلنۍ کې زه د خپل خواهش او پلار په موافقه د یو شاګرد سره د پنځو ورځو کار کولو ورو سته مې طبع را د جلب او هغه وظیفه مې پر یښوده او د حاجي محمد نبي مستري سره شاګرد سوم او شاګردي مې دری کاله دوام وکړ وروسته تر هغه مې علاقه د کوچۍ کشۍ سره پیدا سوه ځکه او د استاد محمد حسین کوچۍ کش سره چې په کندهار کې د کوچۍ کشۍ لومړنی استاد و شاګرد سوم خو دا هم باید ووایم چې د هغه ی استاد لومړنی شاګرد زه وم چې د استادی لقب مې وګاټه او په ۱۳٤۱ کال کې مې د ځان د پاره ځانګړی دوکان جوړ کې .

کله چې مې د شاګردانو په باب پوښتنه ځني وکړه داسې ئې وویل : لس تنه شاګردان لرم محمد حسین او عبدالحسین مې تکړه او د سیدلی شاګردان دي خو تر اوسه پورې زما کم شاګرد د استادی ځای ته نه دی رسیدلی

ده وویل : زموږ کار د عراده جاتو د ریت جوړول ، کوچۍ کشۍ ، رنګ اوول او رنګ دی خو د مراد ی رنګول موږ د ترافیکی اجازې په اساس د پوډر او د جوانسیر له مخې کوو یعنې هر رنګ چې ئې په جوانسیر کې لیکلی وي موږ هم هغه ډول رنګ ور کوو .

مګر د جواز سپرد لیکنې مخالف که چا موټر رنګ کاوه نو باید د ترافیکو د مدیریت اجازه نامه په لاس کې ولري .

د کندهار نامتو کوچۍ کش د یوې بلې پوښتنې په جواب کې وویل :

د یوه کوچۍ کش ابتدائي سرمایه باید شل زره افغانۍ وي خو تردې را وروسته ئې که سرمایه سل زرو افغانیو ته ور سیږي لا هم لږ ده یعنې مراد دا چې لږ ئي سرمایه باید تر شل زره افغانۍ کمه نه وي .

ده نو موړي دا هم وویل :

د کندهار په ښار کې د کوچۍ کشۍ پنځلس دکانونه سته خو دا چې کم یو ئې استادي لري دا ځکه چې هر یو وائي زما د غه کې خوندېږدي .

د محمد مهدي څخه مې پوښتنه وکړه چې یو شاګرد په څومره موده کې استاد کېږي په جواب کې ئې وویل :

دا کار د شاګرد په فکر او څیر کې پوري اړه لري دا سې شاګردان سته چې په یوه کال او یا دوو کلونو کې ماهر ته رسوي مګر په مقابل کې بیا داسې کسان هم سته چې په لس کاله کې هم څه نه زده کولای .

د سردار شاه ترجمه:

# د حامله توب د مخنیوی ګولی

د حاملې کېدو او د توالد د تنظیم مسئله څو کاله کېږي چې د نړۍ په ډېرو پرمختللو هېوادو کې د توجه وړ ګرځېدلې ده.

مقصد د کورنۍ د تنظیم او توالد د کنترول څخه دادی که مېړه او ښځه په خپل میل سره او د خپلې کورنۍ او اجتماعی اقتصاد په نظر کښې نیولو سره

یو د حامله توب د مخنیوی طریقه پکار واچوی او د اولادی حساب د یرښت مخنیوی وکړی ښه به وی. د حمل د اړې مخنیوی او د کورنۍ د غړو محدود کول د انسانانو د پاره یو نوی فکر نه دی، د ځینو روایاتو او تاریخی مدارکو په اساس بشر حتی څو زره کاله پخوا د حامله توب

د مخنیوی دپاره په ډول ډول اقدامات لاس پورې کړی دی چې غالباً به د خرافاتو سره یو ځای و. مګر خوشبختانه په دغه پېړۍ کې چې انسانان د عالی پرمختګو په سایه کښې تل د ځینو طبیعی

اسرارو څخه پرده پورته کوی د طب د علم پوهانو هم د غه رنګه ډېر بریالیتوبونه ترلاسه کړی دی

چې د هغو څخه یو د حامله توب پر ضد ګولیو او دارو ګانو جوړول دي چې د اکشف د طب په علم کې یو انقلاب بلل کېږي او ان ورځ په ټوله نړۍ کې په ملیونو ښځې د هغه څخه استفاده کوی.

د حمل د اړې د مخنیوی دپاره ډېری اغېزه ناکې او مطمئنې دوا دی فعلاً (هورموني ګولی) دي چې د دې

ګولیو کاشف یو امریکائی پوه ډاکټر «پین کاسل» او ملګری ئې (جاک راک) او ډاکټر (مین چوته چانګ) دی.

ډاکټر پن کاس د خپل ملګری ډاکټر چانګ په کومک د حاملګی د مخنیوی ګولیو تأثیر لومړی وار

پر موږیانو او موږکانو باندې وازمویه چې ډېره په زړه پوری نتیجه ئې ورکړه وروسته بیا (ډاکټر جاک راک) په خپلو

ازمایښتونو سره د هغه ګولیو مثبت او بې ضرره تأثیر د لومړی وار دپاره پر انسان باندې په اثبات ورساوه

نو پدې ترتیب سره د طب په نړۍ کې یو نوی انقلاب شروع شو.

د کیمیا او دواسازۍ د صنعت د پرمختګ په نتیجه کې ان ورځ کېدای

شی ځینې جنسی هورمونونه لکه (استروجین او پروسترون) چې په طبیعی ډول د ښځې په بدن خصوصاً په تخمدان

کې په زیاته اندازه تولیدیږي په مصنوعی ډول جوړ کړي او د ګولی یا امپول په ډول ئې د ښځو ته ور کړی.

## د ګولیو او ازریقی امپولونو تأثیر

د غه ګولی او یا امپولونه چې ذکر شول د ښځې د تخم د جوړ ولو څخه چې عموماً

د میاشتنی عادت په او اسطو کښې پیښیږی مخنیوی کوی او په نتیجه کښې د حاملګی مانع کیږی.

د تخم جوړول په تخمدان کښې د ځینو هورمونو د ترشح په نتیجه کښې لکه «ګونادو ترو پین»

چې د مغز د هیپوفیز په غدو کښې تولیدیږی او د وینې د لاری څخه د ښځو د تخمدانو ته رسیږی صورت مومی.

د حاملګی د مخنیوی دوا دی او ګولی ددې هورمونو د ترشحاتو د کمښت باعث کیږی نو په دې

ترتیب د تخم د جوړ ولو مانع ګرزی.

## د حامله ګۍ ضد ګولی

د حامله ګۍ ضد ګولۍ د لومړی ځل دپاره په ۱۹۵۷ کال په امریکا او انګلستان کی تهیه شوی او د استفادی وړ وګرځېدلې.

په ۱۹۶۰ کښې د انګلستان د روغتیا او د کور نیو د تنظیم انجمن د هغوی مصرف تائید کړ نو په

همدې ترتیب د نړۍ په ډېرو پرمختللو ملکو کښې د هغه مصرف رواج ومونده.

## هغه خطرات چې د دې ګولیو څخه پېښېږي

په دې باره کښې ډېر اړودوړ (ډول ډول) مطالب ویل شوي دي خصوصاً له هغه وخته چې د دې ګولیو مصرف

معمول شو او دنړۍ په ډېرو اکثرو اودطب پوهان په دې فکر کښې شول چې د دې ګولیو او دوا او

په شاو خوا کښې ځینې علمي تحقیقات وکړي او د دې موږ مونږ ګولیو تأثیرات مطالعه کړي

ځکه نو په دې باب ترا اوسه پوري ځه زیات ویل شوي دي.

په تجربه سره ایډل شوي ده

چې د دې ګولیو د مصرف کوونکو څخه ځینې په اول سر کښې د ځینو ناراحتیو سره مخامخ سوي

دي لکه ستړیا، د سر درد، قي (استفراق) ډېری لګې، د بدن د وزن اضافه کېدل او یا کمېدل

د سینې د څو کو حساسیت او بالاخره په ځینو ښځو کښې د جنسي تمایل کمښت، چې دغه پېښې د څو

ورځو وروسته په خپله زیاتېږي او یا د ګولیو تبدیلول او یا هم د هغوی د نه مصرف په نتیجه کښې

بېرته رفع کېږي.

## دعلمي څېړنو نتایج

د ځینو پوهانو په اورېدلو دقیقو تحقیقاتو کښې (کېرشوف) الماني پوه په المان کښې پر

۱۶۹۵ ښځو باندې د ۱۱۱۵۷ میاشتني عادتونو په اثنا کښې هغوی چې د حاملګۍ د ضد ګولیو

څخه استفاده کوله ځینې تجربې وکړې، هغوی د نتیجې ته ورسېدې

چې په سل کښې ۱۶ هغه ښځو څخه چې د حاملګۍ ضد ګولۍ یې استعمالولې د جنسي تمایلاتو د کمښت څخه شکایت

درلودلی چې په تجربه څرګند شوي ده او په ځینو ښځو کښې د دې ګولیو د استعمال په نتیجه کښې ځینې تمایلات تر پخوا

لا هم زیات (شوي دي. لیډی د اسپس ای) چې یوه امریکائي ډاکټره ده د اسې

احصائیه په لاس ورکوي ده چې وائي ډېر لږ د هغو ښځو څخه چې د حاملګۍ ضد ګولۍ استعمالوي یعنې په سل کې

شپږ جنسي بې میلي پیدا کوي، حال دا چې په سل کښې د ۳۸ ښځو جنسي تمایل او شوق اضافه شوي ده.

## د وینې د لخته کېدو (ګاڼه کېدو) مسئله

د هغه پېښو څخه چې د حاملګۍ د ضد ګولیو د استعمال څخه پېښېږي یوه هم د وینې د ګاڼه کېدو مسئله ده.

څو کاله پخوا د هغه خبر د لومړي ځل د پاره د انګلستان د علمي منابعو د خوا خپور شو چې ډېری ځینې یې او تحقیقات یې په بر کښې درلودل چې د هغوی په مطابق

په شمالي امریکا کښې هم ځینې څېړنې وشوې او د اسې نتیجه ځینې وا خیستل شوه چې حتی د وینې د ګاڼه کېدو خطر د دې ګولیو د مصرف په نتیجه کښې ډېر لږ دي.

د هغه خبر له مخې چې د ملګرو ملتونو د احصائیو د خوا څخه نشر شوي دي د اسې ښئي چې اوس ورځ ۸۱۵ ملیونه امریکائي ښځې او ۱۰ ملیونه د نورې نړۍ ښځې د دې ګولیو څخه استفاده کوي.

ځینې احصائیې په لاس راغلې او د هغه څخه د اسې معلومېږي چې په انګلستان کښې د هر هغه ۲۰ ښځو څخه چې د حاملګۍ ضد ګولۍ خوري فقط یوه ښځه د وینې د ګاڼه کېدو او یا د وینې د لخته کېدو په مرض اخته کېږي او د هر هغه ۶۷ زرو په ډله کې چې دغه ګولۍ

مصرفوي او د ۲۰ هغه تر ۳۴ کاله پورې عمر لري فقط یو نفر ځنې مري.

(هالرو او د و یکث) چې د طب پوهانو علم او ډاکټر د ی ځینې تجربې د وینې د ګاڼه کېدو په

باره کښې کړې دي او ډاکټر چې د وینو د ګاڼه کېدو عامل د حاملګۍ ضد ګولۍ ته دی او د دې ګولیو

څخه د خطر نه دي ځان خوندي کړ د بلې خوا هغه د هغه پوهان په دې عقیده دي چې د استروجین او

یا پرو جیسترون هورمونونه د وینې د ګاڼه کېدو موجب ګرځي اما سره د دې تر اوسه پورې

پوهان د هغه هورمونو سره چې د وینو د ګاڼه کېدو باعث ګرځي نه دي اشنا شوي.

## ګولۍ او د سرطان مسئله

هغه ځېړنې چې په دې څو کلو کښې د سور عالمانو په واسطه شوي دي تر اوسه پورې

یې د دې ګولیو د مصرف څخه د سرطان د مرض پیدا کېدل نه دي تأیید کړي، یعنې هغه پخوانۍ

عقیدې چې د دې ګولیو په باره کښې خلکو درلودې د دې نظریې په اساس بالکل غلطې ثابت شوې.

او بر عکس عالمانو او محققینو د اسې تشخیص کړي دي چې څه بعضي انواع سرطان چې د ښځو په تناسلي اعضاوو

(په ۴۹ مخ کې)

(د۴۴مخ پاته)

# د کوچنیانو په باره کې ...

د کوچنیانو احساس په دې دوره کې د اشتباهاتو سره ګډ وي او هغوی د ځانه څخه پوښتنې کوي چې زه څنګه یم؟ او زه باید په څه ډول کار وکړم؟ د نورو سره د رابطې د ساتلو په فکر کې وي چې په څه ډول باید د هغو سره رابطه ولري؟ کوچنی دا فکر کوي چې په څه ډول د آینده مسئولیتو، کار او دنوي کورني د تشکیلولو د پاره هڅه وکړي. هغه پر خپل ځان باندې ويسا او اطمینان درلودلو ته اړ دی پدې سبب د باور درلودلو او اعتماد د پلاس راوړلو د پاره د بعضې پېښو څخه په پېره کې وي او د اسوال ورته پیدا کېږي چې په هرشي کې څه نه څه معلومات ولري همدا احساس دی چې د کوچنی څخه یو پوه سړی جوړوي پدې وخت کې کوښښ کوي چې د یوه حقیقي فرد په څېر ځان معرفي کړي د هم جنس یا مقابل جنس سره هم تمایل لري او په کارو کې د هغو سره برخه اخلي پدې مرحله کې دده په مینه او رفاقت کې صمیمیت پیدا کېږي چې د اکار د ډېر احساس نمایندګي کوي پسله دې څخه هرشي ته ډېر پېړه کوي چې کشف ئې کړي هغه تجربې چې ده کې پیدا کېږي دي ودې کارو ته متوجه کوي، او دې پوښتنې کوي چې نور خلک څه غواړي د احساس په ده کې پیدا کېږي.

د پورته وینا و څخه داسې نتیجه اخستلای سو چې بحراني دوره په کوچني کې یو ډېر احساساتي دوره ده

په نجونو کې د بدن پر چستګۍ او اندام چې ددوی په ژوند کې یو لوی تحول منځ ته راوړي معلومېږي او په هلکانو کې د قد لوړېدو او ږیري شنه کیدل دی تحول سبب ګرځي پدې دوره کې میندې او پلرونه باید کوښښ وکي چې روحي پېښې پر کوچنیانو داژلي

ځینې مملکتونه په خپلو پروګرامو کې جنسي موضوعات کوچنیانو ته ښه درسوي او په ځینو مملکتو کې بیا جنسي پېښې په بشپړه توګه د کوچنیانو څخه پټوي

باید دا ووایو که لوړې پېښې پټې وساتلې شي نه پوهېږي چې نجلۍ او هلک جلا درس ووائي او ښوونځي ئې هم جلاوي

او والدین باید کوښښ وکي چې مقابل جنس ته ډېر نږدې پرې اړې پیدا سي حال کې چې په ځینو ټولنو کې جنسي ښوونه اور وزنه کوچنیانو ته

ورزده کوي په هغه وخت کې نودوی کولاسي چې یو ځای درس ووائي مور او پلار دې پېړه وکړي چې

پدې سن کې خپل کوچنیان یوازې پرېږدي د خپلو کوچنیانو د کارو څخه باید خبر وي او هم باید د ښوونځیو د اداره سره ډېر تماس ولري او خپل کوچنیان باید ډېر تشویق کړي چې انحرافي خوائي

لېږي پدې وخت کې د نجونو او هلکانو میل د هر څه د پاره لېږېږي او کوښښ کوي چې د خپل فکر کولو د پاره نور شیان پیدا کړي د

ځینو استادانو، تصویر لرونکو مجلو او موږو څخه خبري کوي او د هغو سره د لېسې لري

ډېر غواړي چې فلمونه ووینې او که په ښه توګه رهنمائي او وروزل سي د محبت، رفاقت او

نورو ښو شیانو احساس ورته پیدا کېږي ډېر مهربانه، مطیع ګرځي او غواړي چې ډېر کار وکړي.

د بلوغ په دوره کې کوچنی د مفکورې په تاسیس کولو او د هغه په میزان کولو اخته کېږي

دغه دوره ده چې د ځوان سره کومک کوي څکه دی د خپلې مفکورې میزان کوي او پدې پوهېږي چې انسان د مجبورو

شیانو په مقابل کې واقع دی بالغ انسان پوهېږي چې د ژوند مسئولیت پخپله دده پر غاړه دی.

حتی دی فکر کوي چې د خپلو او لیاؤ سره فرق لري او

(پاته په ۳۹مخ)

د عبدالمنان امین په قلم :

# میناتوري زموږ په هیواد کښې

# یو په زړه پورې او لرغونی هنر دی

## د هیواد د نامتو میناتوریست سره مرکه

د هیواد د نامتو او تکړه میناتوریست ښاغلي محمد علي نقاش چه اوس په کندهار کې د میرویس

نیکه د گنبدي د میناتورۍ چارې د هغه په واسطه پرمخ بیول کیږي د یوې مرکې په ترڅ کښې وویل :

د میرویس نیکه د گنبدي د میناتورۍ چارې د اوقافو د عالي ریاست له بودجې څخه اجرا کیږي



ښاغلی محمد علي
میناتوریست

دوی وویل : تر اوسه پورې د ۱۲۰۵ زرو افغانیو تخصیص د همدې کار د پاره ورکړه شوی دی .

ښاغلي محمد علي وویل :
د میرویس نیکه د گنبدي د میناتورۍ کار تیر کال د سلواغې

له میاشتې څخه شروع شوی او تر اوسه پورې په سلو کې ۸۵ د هغه کار پای ته رسیدلی دی .

سږ کال هغه وخت چه د لوی اختر په ورځو کې همایوني معظم اعلیحضرت کندهار ته تشریف

راوړی وُ د میرویس نیکه د گنبدي د میناتورۍ د چارو کارونې وکتې او د هغه د ښکلا او د کار د پرمختیا

په باب ئې د ښاغلي محمد علي نقاش له زحمتو او زیار څخه خپل شاهانه رضائیت ښکاره کړی .

ښاغلي محمد علي وویل :

د میناتورۍ هنر د غزنویانو په عصر په هغه ځای کې ډیر رواج

درلود او پراختیا یې موندلې، او هغه وخت دا هنر د سطرنج د تختو په جوړولو او د اسې نورو شیانو

کې په کار لویدلی خو له دې کبله چه د یوې تختې سطرنج د نقاشۍ او یا میناتورۍ کار د ۸ څخه تر

۱۰ ورځو پورې وخت نیوی ځکه چه په بازار کې دی صنعت زیات اخستونکی نه درلودل نو ورو،

ورو له مینځه ولاړی او د هغه بازار هم سوړ شو .

ښاغلي محمد علي وویل : اوس زموږ په هیواد کښې د میناتورۍ

او نقاشۍ هنر یوازې په تاریخي او متبرکو ځایو نو کښې په کار لویږي .

په کندهار کښې د مبارک کې خرقې، د اعلیحضرت احمد شاه بابا او میرویس نیکه د گنبدو په ښائسته کولو کښې له دې هنر څخه کار اخیستل

شوی دی .

ښاغلي محمد علي مشهور ره میناتوریست او نقاش وویل چې

زه په ۱۳۱۵ کال کښې د اعلیحضرت احمدشا بابا په گنبده او په ۱۳٤٥ کال کښې د مبارکې خرقې په گنبده کښې په میناتورۍ بوخت وم .

ده وویل : هغه وخت ما پنځه تنه شاگردان درلودل او اوس چې د میرویس نیکه د گنبدې په میناتورۍ بوخت یم دوه تنه شاگردان

هم زما سره کار کوي .

ښاغلي محمد علي د میناتورۍ د لگښت او د هغه د وخت په هکله داسې وویل :